

## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی    دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې    هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی    د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو    د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي    پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي    هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي    لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به    لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر    وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

د پوهنې وزارت

# رياضي

## څلورم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ل.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** ریاضي

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د ریاضي د دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** څلورم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کېږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېځلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

گرانو زده کوونکو! لاندي موضوع ګاني تاسې په دریم ټولګی کښې لوستلې دي، خو یوځل بیا یې په لنډه توګه یادونه کوو .

لومړی لوست

# د عددونو د مقامي قیمتونو پیاوړي کول تر سلو زرو پورې

پوښتنې

- ایا ویلای شئ چې د (٦٣٥٤) عدد څو رقمي دی؟
- ستاسو په نظر د (٩٩٩٩٩) عدد څو رقمي دی؟
- ویلای شئ چې په هره طبقه کې څو مرتبې شته دي؟

**لومړی مثال:** زده کوونکي دې د لاندې عددونو رقمونه په اړوندو مرتبوکې ولیکي؟

لس زره یوسلو پنځه ویشت؟

**حل**

| د زریزو طبقه | | | دیو یزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سل زریز | لس زریز | زریز | سلیز | لسیز | یویز |
| | ١ | ٠ | ١ | ٢ | ٥ |

**دويم مثال:** د لاندې چوت اړونده عددونه ولیکئ:

**حل:**




فعالیتونه

١ - د لاندې عددونو رقمونه په اړونده مرتبو کې ولیکئ.

- دیارلس زره دوه خلوېښت

| د زریزو طبقه | | | دیو یزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سل زریز | لس زریز | زریز | سلیز | لسیز | یویز |
| | | | | | |

- پنځه خلوېښت زره یوسلو یو

| د زریزو طبقه | | | دیو یزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سل زریز | لس زریز | زریز | سلیز | لسیز | یویز |
| | | | | | |

۲- د لاندېنیو چوتونو اړوند عددونه ولیکئ:




## پوښتنې

د لاندېنیو عددونو رقمونه په راکړل شوو جدولونو کې ولیکئ.

- اووه ویشت زره اووه سوه یو ویشت:

| دیو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| | | | | | |

- یو دیرش زره اته سوه

| دیو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| | | | | | |

- خلورویشت زره دو سوه پنځلس

| دیو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| | | | | | |

د لاندنیو چوټونو اړوند عددونه ولیکئ:





## کورنۍ دنده

په خپلو کتابچو کې یو چوت رسم کړئ او لاندې عدد په کې ولیکئ.

پنځه اویا زره او پنځه



## پوښتنې

۱- د لاندې جملو اړونده عددونه و لیکئ.

| | |
|---|---|
| دوه سوه اته خلویښت. | ______ |
| دری زره اوه سوه  خلور ویشت | ______ |
| پنځلس زره نهه سوه خلور | ______ |
| درویشت زره دوه سوه لس | ______ |
| دوه خلویښت زره یوسل او پنځه ویشت | ______ |
| یوسل او درې او یازره نهه سوه شپږ اتیا | ______ |
| درې سوه اووه اتیا زره دوه سوه اووه اتیا | ______ |
| پنځه سوه نهه خلویښت زره درې سوه پنځوس | ______ |
| اووه سوه یو نوي زره پنځه | ______ |

**۲** - د <، > او = علامې په تشو ځايو نو کې کېږدئ:

| | |
|---|---|
| ۲۰۶ ○ ۴۷۳ | ۱۲۴۹۹۸ ○ ۱۲۵۳۷۶ |
| ۱۵۰۰۰۱۵ ○ ۱۵۱۵ | ۳۰۲۵۰۰ ○ ۲۷۰۳۲۰ |
| ۲۲۰۰۴ ○ ۲۱۰۱۴ | ۱۷۸۹۴۳ ○ ۴۸۰۰۲۹ |
| ۸۰۰۰۰۸ ○ ۸۰۰۰۱۸ | ۵۶۱۰۱۲ ○ ۴۰۰۷۸۵ |
| ۹۰۰۰۷۷ ○ ۹۰۰۰۷۸ | ۵۰۵۰۵۰ ○ ۵۰۵۰۵۵ |
| ۲۲۷۳۰۵۷ ○ ۳۱۴۸۴۰۲ | ۱۰۰۰۰۰ ○ ۹۹۹۹۹ |

# تخمین (اټکل) کول

## پوښتنې

- تاسې کوم وخت د ځینو شیانو اټکل کړی دی؟
- اټکل کول تل سم وي؟
- څه فکر کوئ کوم ډول اټکل ته ښه اټکل ویلای شو؟
- کوم شی چې د شمېرلو وړ نه وي، اټکل کیدای شي؟



څو دانې پوکنۍ به وي؟

**مثال:** یوه اندازه درسي مرستندویه مواد چې په دې لوست کې ورته اړتیا ده لکه یو موټی لوبیا چې د شمېرلو وړ دي د میز پر مخ ږدو او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوو څوك ویلای شي چې د میز د سر لوبیا څو دانې دي؟
د مثال په ډول احمد ځواب وایي ۵۰ دانې. د احمد نوم پر تخته لیکو او ۵۰ چې احمد ویلي دي. په لاندې ډول یې لیکو:



- احمد وویل: ۵۰ دانې
- محمود وویل: ۵٤ دانې
- زلمي وویل: ٦۰ دانې
- بریالي وویل: ٤۰ دانې

اوس د میز پرمخ لوبیا شمیرو، وینو چې ۸۵ دانې دي.
ګورو چې د زلمي اټکل حقیقت ته نژدې دی. نو وایو چې تر ټولو ښه تخمین د زلمي دی.

**فعالیتونه**

**زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې لاندېني فعالیتونه ترسره کړي:**

**١** – یو موټی نخود را واخلئ او اټکل وکړئ چې څو دانې دي، وروسته هغه وشمېرئ او وګورئ چې ستاسې په تخمین (اټکل) او په حقیقي شمېر کې څومره توپیر دی.






**۲**- د اورلگیت یوه قطی را واخلئ او اټکل وکړئ چې په منځ کې یې د اورلگیت څو لرگي موجود دي، وروسته دقطی په دننه کې د اورلگیت لرگي وشمېرئ او وگورئ چې څو داني دي. بیا نتیجه واخلئ چې ستاسې په اټکل او د لرگیو د شمېر تر منځ توپیر څو دی.



**۳** – یو موټی جوار را واخلئ، اټکل وکړئ چې څو داني دي، وروسته د جوارو داني وشمیرئ او وگورئ چې ستاسې په اټکل او د جوارو په شمېر کې توپیر څو دی؟



## کورنۍ دنده

په کور کې یو شی چې د اندازه کولو او شمېرلو وړ وي وټاکئ او اټکل یې وکړئ بیا یې  اندازه یا وشمېرئ او وگورئ چې ستاسې اټکل څومره سم دی.

## پوښتنې

۱- اټکل وکړئ چې ستاسو د میز اوږدوالی څو سانتي متره دی او بیا یې د خط کش په مرسته اوږدوالی پیدا کړئ چې ستاسو اټکل حقیقت ته څومره نژدې و؟

۲- یو موټی غنم راواخلئ او اټکل وکړئ چې څو دانې دي، بیا یې وشمېرئ تر څو معلوم شي چې ستاسو اټکل څومره حقیقت ته نژدې دی؟

دریم لوست

# په عمودي او افقي ډول د عددونو جمع کول

**پوښتنې**

- که چېرې غواړئ چې دوه عددونه په عمودي ډول جمع کړئ د هغو رقمونه په څه ډول یو تر بل لاندې لیکئ؟
- ویلای شئ چې د عدونو جمع لومړی له کومې خوا څخه پیل کېږي؟
- ستاسو په نظر عددونه په افقي ډول څنګه جمع کېږي؟

**لومړی مثال:** د ۱۳۵۴۲ او ۲۳۰۷ عددونه په عمودي او افقي ډول جمع کړئ.

**حل:**

| | |
|---|---|
| ۱۳۵۴۲ | ← د جمعې لومړی جزء |
| + ۲۳۰۷ | ← د جمعې دویم جزء |
| ۱۵۸۴۹ | ← د جمعې حاصل |

۱۳۵۴۲ + ۲۳۰۷ = ۱۵۸۴۹

**دویم مثال:** په ۱۳۸۳ هـجري لمريز کال کې ۱۸۵٤۰ تنه زموږ له هېواد
څخه د حج د فريضې د ادا کولو لپاره بيت الله شريف ته تللي وو، په ۱۳۸٤
هـجري لمريز کال کې ۲۱۲۵۰ تنه بيت الله شريف ته تللي دي، د افغاني
حاجيانو شمېر په دواړو کلونو کې څو تنه کيږي؟

**حل:**

$$
\begin{array}{r}
۱۸۵۴۰ \\
+۲۱۲۵۰ \\
\hline
۳۹۷۹۰
\end{array}
$$

**فعاليت**

**د لاندې پوښتنو د جمعې حاصل په لاس راوړئ.**



۳۲+۴۴=?

۳۷۶ + ۱۳۷ =?

۹۳۵۱ + ۷۸۵۴ =?



## کورنۍ دنده

د ۹۲۷۳۵ او ۱۱۵۲۰ عددونه په عمودي او افقي ډول جمع کړئ.



## پوښتنې

۱– لاندې عددونه جمع کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۴۳۸ | ۳۱۷۲ | ۴۹۴۸ |
| ۱۳۵۷ | ۱۵۹۲ | ۳۵۱۷ |
| +۱۲۳۸ | +۴۲۶۱ | +۲۱۲۸ |

۲– لاندې عددونه په افقي ډول جمع کړئ:

۷۱۴۹+۱۵۰۳=

۹۰۱۷+۳۳۸۴=

۵۸۲۰۱+۳۱۰۵۶=

۹۱۰۳۲+۱۴۳۲۱+۲۸۱۵۰ =

# عبارتي پوښتني

۱– یوه بزګر یو غویی په ۲۱۴۰۰ افغانیو واخیست او یوه غوا یې په ۱۹۸۵۰ افغانیو واخیسته معلوم کړئ چې نوموړي بزګر څو افغانۍ مصرف کړي دي؟

۲– د واکسیناتورانو یوې ډلې په یوه اونۍ کې ۲۵۹۸۰ کوچنیان او په بله اونۍ کې ۲۸۶۴۵ کوچنیان واکسین کړي دي، معلوم کړئ چې نوموړو ډلو په دواړو اونیو کې څومره کوچنیان واکسین کړي دي؟

۳– یوه بڼوال د ۶۴۹۷۵ افغانیو انګور او د ۲۰۵۹۰ افغانیو مڼې خرڅې کړي دي، معلوم کړئ چې نوموړي بڼوال د څو افغانیو میوه خرڅه کړې ده؟

٤– د یوه ښوونځي د زده کوونکو شمېر ۱۵۴۶ او د بل ښوونځي ۲۰۱۶ کسه دي. ووایئ چې په دواړو ښوونځیو کې څو زده کوونکي په زده کړو بوخت دي؟

۵– یوه سړي د ۸۴۴۵ افغانیو غنم او د ۴۳۷۰ افغانیو وریجې واخیستې پیدا کړئ چې نوموړي سړي څو افغانۍ لګولي دي؟



# په عمودي او افقي ډول د عددونو تفریق کول

**پوښتنې**

- که چېرې وغواړئ دوه عددونه په عمودي ډول یو له بل څخه تفریق کړئ عددونه یو تر بل لاندې څه ډول لیکئ؟
- ستاسو په نظر د تفریق عملیه لومړی له کومې خوا څخه پیل کړو؟
- که غواړئ چې دوه عددونه یو له بل څخه په افقي ډول تفریق کړئ څنګه یې سرته رسوئ؟

**لومړی مثال:** له ۲۳۸ عدد څخه د ۱۱۴ عدد په عمودي او افقي ډول تفریق کړئ.

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ۲۳۸ | ← | مفروق منه |
| − ۱۱۴ | ← | مفروق |
| ۱۲۴ | ← | د تفریق حاصل |

| مفروق منه | | مفروق | | دتفریق حاصل |
|---|---|---|---|---|
| ↓ | | ↓ | | ↓ |
| ۲۳۸ | − | ۱۱۴ | = | ۱۲۴ |

**دويم مثال:** د فريد پلار ۵۴۹۰ افغانۍ درلودې، په ۲۱۴۰ افغانيو يې زوی ته قلم، کتابچه او کالي واخيستل. معلوم کړئ چې څو افغانۍ ورسره پاتې دي؟

**حل:**

۵۴۹۰
− ۲۱۴۰
―――――
۳۳۵۰

### فعالیت

لاندې پوښتنې حل کړئ.

۴۷۳۵
− ۳۵۲۹
―――――

۲۹۸۶
− ۱۵۴۰
―――――

۸۷۰۲
− ۴۵۷۹
―――――

۲۵۱۲۴
− ۱۳۸۵۰
―――――

۳۶۵۰ – ۱۳۴۵ =

۵۰۴۳ – ۲۹۸۷ =

۹۸۷۴ – ۳۲۵۱ =

۷۵۶۳۸ – ۴۳۲۱۵ =

## کورنۍ دنده

له ٥٨٦٧ عدد څخه د ٩٢٧٦٤ عدد په عمودي او افقي ډول تفریق کړئ.

## پوښتنې

١ لاندې پوښتنې په افقي ډول سره حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۶۳۴۵۹ − ۱۵۲۳۰ = | ۴۹۴۵ − ۲۳۸۹ = |
| ۴۶۷۱۳ − ۲۸۴۵۲ = | ۵۷۶۳ − ۳۷۹۸ = |

٢ لاندې پوښتنې حل کړئ:



# عبارتي پوښتنې

۱– یوه سړي (۲۳٤۷۵) افغانۍ درلودې په (۱۳۵۰) افغانیو یې خوراکي مواد واخیستل، معلوم کړئ چې له نوموړي سره څومره افغانۍ پاتې دي؟

۲– د یوه لومړني ښوونځي د زده کوونکو د داخلي شمېر (٤۳٤۰) تنه دی، که له هغوی څخه (۲۳۵۰) تنه هلکان وي، د نجونو شمیر به څو تنه وي؟

۳– یو سړی د خپل کور د جوړولو لپاره (۲۲۳٤۰) خښتو ته اړتیا لري که نوموړي (۱۵۲۹۰) خښتې برابرې کړې وي، معلوم کړئ چې نورو څو خښتو ته اړتیا لري؟

٤– په یوه کلي کې باید (۲٤۷۲۰) کوچنیان واکسین شي. که ګمارل شوې ډله (۱۳۱۹۹) کوچنیان واکسین کړي وي، نور څو کوچنیان پاتې دي چې واکسین شي؟



# ضرب

**پوښتنې**

- که چېرې وغواړئ دوه عددونه چې له یوه څخه زیات رقمونه ولري په عمودي ډول ضرب کړئ د عددونو رقمونه څنګه یو تر بل لاندې لیکئ؟
- ستاسو په اند د ضرب عملیه څه ډول او له کوم لوري یې باید پیل کړو؟

**لومړی مثال:** د ۱۲ عدد د ۱۲۶ په عدد کې ضرب کړئ.

**حل:**

```
   ۱۲۶   ⟵ د ضرب لومړی جزء
 × ۱۲    ⟵ د ضرب دویم جزء
 ─────
   ۲۵۲
 +۱۲۶
 ─────
  ۱۵۱۲   ⟵ د ضرب حاصل
```

**دويم مثال:** يو دوکاندار ۳۷۵ کیلو بوره چې د یو کیلو بورې بیه ۵٦ افغانۍ ده، پلورلې ده، معلوم کړئ چې نوموړي دوکاندار څو افغانۍ لاس ته راوړي دي؟

**حل:**

$$\begin{array}{r} ۳۷۵ \\ \times\ ۵۶ \\ \hline ۲۲۵۰ \\ ۱۸۷۵\phantom{0} \\ \hline ۲۱۰۰۰ \end{array}$$

$$\begin{array}{r} ۸۲۴ \\ \times\ ۶۶ \\ \hline \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۹۲۴ \\ \times\ ۵۲ \\ \hline \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۷۱۳ \\ \times\ ۲۳ \\ \hline \end{array}$$

$$\begin{array}{r} ۲۳۹۳ \\ \times\ ۷۹ \\ \hline \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۱۴۸۹ \\ \times\ ۷۶ \\ \hline \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۱۲۵۴ \\ \times\ ۳۸ \\ \hline \end{array}$$



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې  وليکي او وروسته دې حل کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۶۳۹ | ۷۰۸ | ۹۴۱ |
| × ۷۰ | ×۴۶ | × ۲۵ |



## تمرين

لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۹۷۶۴ | ۵۵۰۴ | ۱۷۰۴ |
| × ۸۵ | × ۶۶ | × ۱۳ |
| | | |
| ۶۹ | ۶۵۷۸ | ۱۸۴۳ |
| × ۸۵ | × ۷۲ | × ۱۲ |
| | | |
| ۷۰۲۴ | ۵۶۷۰ | ۳۹۸۹ |
| × ۶ ۲ | × ۵ ۹ | × ۱ ۲ |

# عبارتي پوښتني

۱–د یوه کلي اوسیدونکو د یوه جومات د جوړولو لپاره مرسته وکړه. که چېرې د ذکرشوي کلي (۱۲۶۷) تنو دا ثواب ګټلی وي او د کلي هر تن ۲۵۰ افغانۍ ورکړې وي، معلوم کړئ چې د جومات له پاره څومره افغانۍ راټولې شوې دي؟

۲– د واکسیناتورانو یوه ډله په یوه ورځ کې (۵٤۰) کوچنیان واکسین کوي معلوم کړئ چې نوموړې ډله به په (۱۵) ورځو کې تنه کوچنیان واکسین کړي؟

۳– یوه بڼوال (۲٤۵) منه انګور پلوري که نوموړي بڼوال یو من انګور په (۱٦٤) افغانیو پلورلې وي، معلوم کړئ چې څو افغانۍ یې لاس ته راوړې دي؟



# د دوه رقمي او درې رقمي عددونو ویش په یو رقمي عدد باندې

## پوښتنې

- که چېرې و غواړئ چې یو دوه رقمي عدد پر یو رقمي عدد باندې وویشئ، عملیه څه ډول پیلوئ؟
- ستاسو په اند د ویش په عملیه کې څه وخت باقي موجود وي او څه وخت باقي نه لري؟
- که چېرې وغواړئ، د ویش یوه پوښتنه وروسته له حل څخه امتحان کړئ، څه به کوئ؟

**لومړی مثال:** د ۷۳ عدد د ۶ پر عدد وویشئ.

**حل:**




د دې لپاره چې پوه شو ایا پوښتنه سمه حل شوې ده که نه، په لاندې ډول یې امتحانوو.

مقسوم    باقي    مقسوم علیه    د ویش حاصل

۷۳ = ۱ + ۶ × ۱۲

**دویم مثال:** یو سوداګر ۸۵ منه غنم په ۵ بې وزلو خلکو باندې په برابر ډول وویشل، معلوم کړئ چې هر یو ته څو منه غنم رسیدلي دي؟

**حل:**

$$
\begin{array}{r|l}
۸۵ & ۵ \\
\hline
-۵ & ۱۷ \\
\hline
۳۵ & \\
-۳۵ & \\
\hline
۰۰ &
\end{array}
$$

**امتحان:**

| | | |
|---|---|---|
| ۱۷ | ← | د ویش حاصل |
| ۵ × | ← | مقسوم علیه |
| ۸۵ | ← | مقسوم |

## فعالیت

**لاندینۍ هره یوه پوښتنه حل او بیا یې امتحان کړئ.**

| | | |
|---|---|---|
| ۸۴ ÷ ۴ | ۹۱ ÷ ۴ | ۶۸ ÷ ۴ |
| ۶۷۲ ÷ ۲ | ۸۴۷ ÷ ۷ | ۷۱۱ ÷ ۳ |



## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، وروسته دې حل او امتحان کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۴۲۵ \| ۵ | ۳۴۴ \| ۶ | ۳۸۵ \| ۵ |



## پوښتنې

لاندې پوښتنې حل او امتحان کړئ

| | | |
|---|---|---|
| ۷۳۲ \| ۸ | ۲۴۵ \| ۴ | ۹۵۶ \| ۷ |
| ۳۲۸ \| ۶ | ۳۵۰ \| ۵ | ۲۹۴ \| ۹ |
| ۷۸۹ \| ۶ | ۶۱۷ \| ۷ | ۸۵۰ \| ۹ |
| ۶۹۰ \| ۷ | ۹۳۰ \| ۵ | ۵۷۷ \| ۷ |
| ۱۱۱ \| ۵ | ۸۰۰ \| ۱ | ۹۰۹ \| ۸ |

# عبارتي پوښتني

۱- د احمد د تاریخ کتاب (۱۶۵) مخونه لري که چیرې هغه له مهال ویش سره سم هره ورځ (۱۵) مخه مطالعه کړي معلوم کړئ چې احمد به نوموړی کتاب په څو ورځو کې تمام کړي؟

۲- دولت غواړي چې (۴۰۰) کڅوړې کیمیاوي سره په ۲۰ تنو بزګرانو باندې په برابر ډول وویشي، معلوم کړئ چې هر بزګر ته څو کڅوړې رسیږي؟

۳- د کرنې وزارت د منو ۳۵۰ اصلاح شوي نیالګي پر ۲۵ بڼوالو باندې په برابر ډول ویشلې دي، هر بڼوال ته څو نیالګي ورکړل شوي دي؟

٤- یوې خیریې موسسې ۲۰۰ قطۍ غوړي ۴۰ غریبو کورنیو ته په مساوي ډول وویشل. هرې کورنۍ ته څو قطۍ غوړي ورکړل شوي دي؟

۵- یوه سړي ۵۰ غریبو زده کوونکو ته ۹۶۰ کتابچې په مساوي ډول ویشلې دي. هر زده کوونکي ته څو کتابچې ورکړل شوي دي؟



اووم لوست:

# طبقې کول او د عددونو لوستل او لیکل تر ملیارده پورې

**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د عددونو طبقې کول څه گټه لري؟
- که په طبقو کولو پوه نه شو، د عددونو په لیکلو او ویلو کې موږ ته څه ستونزې پیدا کیږي؟
- تر اوسه مو د طبقې او مرتبې په باره کې څه اوریدلي دي؟

لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ:




| د یویزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | | د میلیونونو طبقه | | | د ملیاردونو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز | میلیون | لس میلیون | سل میلیون | ملیارد | لس ملیارد | سل ملیارد |
| لومړی مرتبه | دویمه مرتبه | دریمه مرتبه | لومړی مرتبه | دویمه مرتبه | دریمه مرتبه | لومړی مرتبه | دویمه مرتبه | دریمه مرتبه | لومړی مرتبه | دویمه مرتبه | دریمه مرتبه |

**لومړی مثال:** د (۱,۷۸۱,٤۳۵,۲٦٤) عدد په لاندې جدول کې په اړوندو مرتبو کې ولیکې او ویې لولئ.

**حل:**

| د یویزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | | د میلیونونو طبقه | | | د ملیاردونو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز | میلیون | لس میلیون | سل میلیون | ملیارد | لس ملیارد | سل ملیارد |
| ۴ | ۶ | ۲ | ۵ | ۳ | ۴ | ۱ | ۸ | ۷ | ۱ | | |

**دویم مثال:** لاندې شکل په پام کې ونیسئ:




۱- د پورته چوت اړونده عدد ولیکئ.

۲- دا عدد څرنګه لوستل کیږي؟ ویې لیکئ.

**حل:**

| د یویزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | | د میلیونونو طبقه | | | د ملیاردونو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴ | ۰ | ۳ | ۴ | ۳ | ۱ | ۴ | ۲ | ۳ | ۴ | ۲ | ۴ |

څلورسوه څلور ویشت ملیارده، درې سوه څلور ویشت میلیونه، یو سل او څلور دېرش زره او درې سوه څلور

## فعالیت

لاندې چوټ په پام کې ونیسئ:




- اړونده عدد یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
- دا عدد څرنګه لوستل کیږي.

## کورنۍ دنده

د ( ۱,۷۳۰,۲۰۰,۱۹۵ ) عدد رقمونه په لاندې جدول کې په اړونده مرتبو کې ولیکئ؟

| د یویزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | | د میلیونونو طبقه | | | د ملیاردونو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز | میلیون | لس میلیون | سل میلیون | ملیارد | لس ملیارد | سل ملیارد |
| | | | | | | | | | | | |

- د (۲,۵۰۱,۳٤۹,۲۷۸) عدد طبقه بندي کړئ او وروسته یې ولولئ؟
- د یو ملیارد یو سلو دري ملیونه پنځه سوه څلور ویشت زره نهه سوه اووه دیرش عدد ولیکئ.

# پوښتنې



۱– لاندې عددونه لومړی طبقه بندي کړئ او وروسته يې ولولئ.

- ۴۳۲
- ۹۷۰ ۵
- ۱۰۰۰ ۱۰
- ۷۰۴ ۴۳
- ۲ ۰۰۵ ۸۷
- ۳۰۰۰ ۱۰۰
- ۹۴۵ ۴۱۳
- ۵۴۷ ۲۰۱
- ۷۱۵ ۹۳۴ ۱
- ۷۸۱ ۳۴۵ ۲
- ۳۰۰ ۹۰۱ ۱۱۱۵
- ۷۴۹ ۴۵۳ ۳۱۲۶
- ۸۰۵ ۹۹۴ ۱۱۷۹
- ۷۰۰ ۳۶۲ ۲۴۵۵
- ۵۰۱۳۹۰۰۷۰۰



۲– د لاندې جملو اړوند عددونه وليکئ.

- څلور زره يوسلو شل
- د يارلس زره نهه سوه پنځه څلويښت
- اووه او يازره څلور سوه دوه

- درې اتیا زره څلویښت
- یو سلو نهه څلویښت زره پنځه سوه درې شپیته
- دوه سوه دېرش زره او نهه سوه.
- یو میلیون درې سوه اوه نوي زره څلور سوه درویشت
- دولس میلیونه درې سوه څلور اتیا زره دوه سوه پنځه پنځوس
- یوسلو پنځه څلویښت میلیونه اووه سوه نهه شپیته زره نهه سوه څلور دېرش
- یو ملیارد دوه سوه څلور دېرش میلیونه پنځه سوه یوویشت زره یو سلو یو دېرش

# د عددونو ښودل په توسعوي شکل

## پوښتنې

- ویلای شئ چې د ۲۶۳۴۷ عدد له څو لس زرونو، څوزرونو، څو سوونو، څو لسونو او له څو یویزونو څخه جوړ شوی دی؟
- څه فکر کوئ هغه عدد به کوم وي چې د (اووه لس زرونو، پنځه زرونو، اته سلونو، نهه لسونو، او شپږ یویزونو) څخه جوړ شوی وي؟

**لومړی مثال:** د ۳۲۴۵ عدد کولای شو، داسې ولیکو:

۳۲۴۵= ۳۰۰۰+ ۲۰۰+ ۴۰+ ۵

**دویم مثال:** د ۲۵۷۴۴ عدد کولای شو، په توسعوي شکل داسې ولیکو:

۲۵۷۴۴ = ۲۰۰۰۰ + ۵۰۰۰ + ۷۰۰ + ۴۰ + ۴

## فعالیت

**له لاندېنیو عددونو څخه هریو یې په توسعوي شکل ولیکئ.**

۵۳۷۴= ... + ... + ... + ...

۷۶۵۱= ... + ... + ... + ...

۴۲۳۶۴= ... + ... + ... + ... + ...

۹۴۸۴۳۵= ... + ... + ... + ... + ... + ...

په ډلو کې لاندې جدول ته پام وکړئ او وروسته جدول ډک کړئ.

| عددونه | یوونه | لسونه | سلونه | زرونه | لس زرونه | سل زرونه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۵ | | ۳۰ | | | | |
| ۲۷۳ | ۳ | | ۲۰۰ | | | |
| ۱۵۴۶ | | ۴۰ | | ۱۰۰۰ | | |
| ۲۳۶۷۲ | ۲ | | ۶۰۰ | | ۲۰۰۰۰ | |
| ۱۴۲۳۶۴ | | ۶۰ | | ۲۰۰۰ | | ۱۰۰۰۰۰ |

## مثالونه

د ۹ ۸ ۷ ٦ عدد جوړ شوی دی له:

۶ یوونه　۷ لسونه　۸ سلونه　۹ زرونه

د ۷۵٤۱۳ عدد له څو یوویزو، څو لسیزو، څو سلیزو، څو زریزو، څو لس زریزو څخه جوړ شوی دې:

یوونه ◯　لسونه ◯　سلونه ◯　زرونه ◯　لس زرونه

## کورنی دنده

۱- د ۳ ۷ ٤ ۱ عدد جوړ شوی دی له:

| ... یوونه | لسونه.... | سلونه... | زرونه... |
| --- | --- | --- | --- |

د ۲ ٦ ۹ ۵ ۵ عدد جوړ شوی دی له:

یوونه ◯ لسونه ◯ سلونه ◯ زرونه ◯ لس زرونه ◯

۲- لاندې عددونه په توسعوي شکل سره و لیکئ

۴۹۷۳۵= ... + ... + ... + ... + ...

۶۱۸۸۶۴= ... + ... + ... + ... + ... + ...

۳۷۲۸۳۲۱۹= ... + ... + ... + ... + ... + ...+ ... + ...

۲۱۳۵۹۱۸۷۶= ... + ... + ... + ... + ... + ...+ ... + ...+ ...

۹۴۸۴۳۵= ... + ... + ... + ... + ... + ...

۹۴۸۴۳۵= ... + ... + ... + ... + ... + ...

۳- لاندې اړوند عددونه یې ولیکئ.

۶ زرونه ۷ سلونه او ۵ یوونه.................. کیږي.

۹ لس زرونه ۸ زرونه ۲ سلونه او ۷ یوونه............... کیږي.

۵ سل زرونه ۶ لس زرونه ۳ زرونه او ۴ یوونه............................ کیږي.

## پوښتنې



۱– د ۲۵۷۹٤ عدد جوړ شوی دی له:

| ... لس زرونه | ... زرونه | ... سلونه | .... لسونه | ... یوونه |
|---|---|---|---|---|

۲ – د لاندې هر یوه عبارت اړوند عدد ورته مخامخ ولیکئ.

- ۳ زرونه، ۵ سلونه، ۷ لسونه او ۹ یوونه ....................
- ۸ لس زرونه، ۶ زرونه، ۳ سلونه، ۲ لسونه او ۵ یوونه..................
- ۲ سل زرونه، ۳ لس زرونه، ۷ زرونه، ۴ سلونه، ۸ لسونه او ۹ یوونه......
- ۳ ملیونونه، ۴ سل زرونه، ۷ لس زرونه، ۵ زرونه، ۹ سلونه، ۶ لسونه او ۳ یوونه...............

۳– لاندې عددونه په توسعوي ډول سره ولیکئ.

۴۹۷۶= ... + ... + ... + ...

۲۸۵۴۱= ... + ... + ... + ... + ...

۵۳۰۴۹۲= ... + ... + ... + ... + ... + ...

۷۲۵۶۸۷۳= ... + ... + ... + ... + ... + ...+ ...

۹۱۰۱۱۱۲۱۳= ... + ... + ... + ... + ... + ...+ ...+ ...+ ...

۸۷۶۵۴۳۲۱= ... + ... + ... + ... + ...+ ...+ ...+ ...

۱۹۸۷۶۵۴۳۲۱= ... + ... + ... + ... + ... + ...+ ...+ ...+ ...+ ...

# تر ملیارده پورې د عددونو جمع کول

**پوښتنې**

- که چېرې و غواړئ چې دوه لوی عددونه یو له بل سره جمع کړئ د عددونو د هرې مرتبې او طبقې اړونده رقمونه باید څنګه یو تر بل لاندې ولیکئ؟
- که چېرې دا کار ونه کړو، څه تاوان لري؟
- ویلای شئ د جمعې عملیه له کومې خوا څخه پیل کیږي؟

**لومړی مثال:**

**حل:**

۹۲۷۶۸۴۱۳۰ ← د جمعې لومړی جزء

+۳۹۲۵۰۴۲۵۴ ← د جمعې دویم جزء

۱۳۲۰۱۸۸۳۸۴ ← د جمعې حاصل

**دویم مثال:** په یوه شرکت کې درې سوداګر شریک دي، که چېرې د یوه برخه (۲۳۷۹۰۰۰) افغانۍ، دبل برخه (۸۱۰۲۵۹٤) افغانۍ وي د نوموړي شرکت مجموعي پانګه معلومه کړئ.

**حل:**

۲۳۷۹۰۰۰

+۸۱۰۲۵۹۴

۱۰۴۸۱۵۹۴

## فعالیت

د (۱۰۲۴۵۹۱۲) او (۵۴۰۸۰۲۵) عددونه یو دبل لاندې ولیکئ.
د پورته دوو عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړئ.

## کورنۍ دنده

د ۵۰۰۱۷۰۹٤۵ او ۹٤۰۵٦۹۰۰ عددونه په عمودي ډول جمع کړئ.

## پوښتنې

۱ – د عددونو هره جوړه ( ۸۹٤۵۰٦۷ ) ، ( ۱۳۲۹۰۰۰ ) او همدارنگه د (۵۷۳٦۰۰۰۹) او ( ٦۵٦۹۸۰۰۱ ) یو تربل لاندې ولیکئ او بیایې جمع کړئ.

۲–په لاندې جدول کې د هر ستون د عددونو د جمعې حاصل لاس ته راوړئ:

| | | |
|---|---|---|
| ۲۳۷۵ | ۷۳۸۰۵۹۳ | ۲۱۸۹۳۵۱ |
| ۵۴۰۰۹ | ۴۰۷۲ | ۳۱۰۵۷۸ |
| ۴۰۷۵۸۶ | ۵۱۷۲۶۸ | ۲۹۶۴ |
| | | |

۳– جمع یې کړئ:

۶۳۴۰۸۹۰۰
+ ۳۴۲۷۳۴۵۸

۴۵۱۲۰۹
+ ۲۰۱۷۳۰

۳۱۹۵۰۶۸
+ ۵۳۰۰۵۴۲

۷۹۹۵۳۰۰۰
+ ۸۰۵۰۴۷۸۵

۸۹۰۵۰۴۲۱۲
+ ۲۵۶۶۸۹۴۵۶

۶۰۰۵۴۷۹۳
+ ۲۱۵۴۷۰۰۰

# عبارتي پوښتنې

۱- که چېرې په تقریبي ډول د کابل د ښار نفوس (۳۸۷۸۵۴۳) د مزار شریف دښار (۱۸۲۴۳۷۵) او د کندهار د ښار (۱۹۶۵۷۸۶) تنه وي، د درې واړو ښارونو نفوس په څومره وي؟

۲- د ننګرهار په ولایت کې د برېښنا بند د جوړولو لپاره ۱۲۹۳۷۶۲ افغانۍ او د برېښنا د بند په سامانونو ۲۱۴۲۳۸۴ افغانۍ خرڅې شوي دي، د برېښنا د بند د جوړولو ټول خرڅ پیدا کړئ.

۳- دوو سوداګرو یوه فابریکه جوړه کړې ده چې د یوه پانګه ۷۰۱۴۵۰۰۰ افغانۍ او د بل پانګه ۵۹۸۹۲۰۰۰ افغانۍ ده، پیدا کړئ چې د فابریکې د جوړولو لپاره څومره لګښت شوی دی؟

۴- دولت په دوو ولایتونوکې دوه روغتیایي مرکزونه جوړ کړي دي. که چېرې د یوه روغتیایي مرکز په جوړولو کې ۱۲۳۸۴۵۰۰ افغانۍ او د دویم روغتیایي مرکز په جوړولو کې ۱۱۹۹۲۳۵۰ افغانۍ لګښت شوی وي، ټول لګښت پیدا کړئ.

۵- د پوهنې وزارت د هېواد په یوه ولایت کې د دوو ښوونځیو لپاره یوه - یوه ودانۍ جوړه کړې ده. که چېرې پر یوې ودانۍ ۱۳۹۸۸۲۰۰ افغانۍ او دویمې ودانۍ ۱۴۱۷۹۱۵۰ افغانۍ لګښت شوی وي، د دواړو ښوونځیو د ودانیو لګښت پیدا کړئ.

لسم لوست

# د جمعي د عمليې امتحان

**پوښتنې**

- د دې لپاره چې پوه شو د جمعي د عمليې پوښتنه سمه حل شوې ده او که نه، څه باید وکړو؟
- ستاسو په نظر د يوې حل شوې پوښتنې امتحان څه ګټه لري؟
- ولې د جمعي د عمليې د امتحانولو لپاره بلې کومې عمليې ته اړتيا شته او که نه؟

**مثال:** جمع يې کړئ

| | | |
|---|---|---|
| د جمعي لومړی جزء ← | ۹۲۷۶۸۴۱۳۰ | |
| | ۳۹۲۵۰۴۲۵۴+ | → د جمعي دويم جزء |
| د جمعي حاصل ← | ۱۳۲۰۱۸۸۳۸۴ | |

**امتحان:** د جمعي د اجزاوو ځايونه بدلوو او د جمعي عمليه يوځل بيا ترسره کوو، که چېرې پخوانی ځواب لاسته راغی، وايو چې سوال په سمه توګه حل شوی دی.

| | | |
|---|---|---|
| د جمعي لومړی جزء ← | ۹۲۷۶۸۴۱۳۰ | |
| | ۳۹۲۵۰۴۲۵۴+ | → د جمعي دويم جزء |
| د جمعي حاصل ← | ۱۳۲۰۱۸۸۳۸۴ | |

## فعالیت

د ۷۲۰۰۵۶۰۴۲ عدد له ۱۰۶۹۰۵۰۰۴ عدد سره په عمودي ډول جمع کړئ، بیا یې امتحان کړئ.



## کورنۍ دنده

د ۹۰۰۵۸۰۰۰۷ او ۱۶۳۰۰۰۷۶۵ عددونه په عمودي ډول سره جمع کړئ او بیا یې امتحان کړئ.



## پوښتنې

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

۵۰۰ ۵۳۰۲۲۴
+ ۳۱ ۲۱۱۴۷۸۹

۶۶۵۳۰ ۵۰۴۱
+۱ ۰۱۵۲۳۷۰۰

۸۹۵۹۰ ۰۴۱۰
+۲۱۱۲۶۳۲۵۷ ۶

۲۴۹۹۰۱۴۸۷
+ ۴۲۰۰۱۳۶۵۴

۴۱ ۶۵۴۲۰ ۱۰
+ ۳۲۱ ۹۱۳۵۲۵

۴۲۷۹۶۵۰ ۰ ۰
+۵۳۲ ۳۰ ۰۷۶۵

۸۱۶۵۴۲۰ ۰ ۰
+ ۵۲۱ ۹۱۳۵۲۵

۵۴۳۰۰۴۵۷۶
+ ۳ ۱۲۱۲۹۰۰۰

۵۰۷۷۰ ۸۹۴۰
+ ۲۲۸۹۲۳۵۸۱

۱۲۳۹۰۱۴۳۷
+۴۲۰۰۱۳۶ ۰۴

# تر ملیارده پورې د عددونو تفریق

**پوښتنې**

- که چېرې وغواړو دوه لوی عددونه یو له بل څخه تفریق کړو د هرې مرتبې او د هرې طبقې رقمونه باید څنګه یو دبل لاندې ولیکو؟
- څوک ویلای شي که چېرې دا کار ونه شي تاوان یې څه دی؟
- د تفریق عملیه باید له کومې خوا څخه پیل کړو؟
- که چېرې د تفریق عملیې د سرته رسولو په وخت کې د لاندني عدد رقم د پورتني عدد له رقم څخه لوی وي، څه باید وکړو؟

**لومړی مثال:** له ۳۵۶۷۲۱۳۰٤٦ عدد څخه د ۲۱۳۲٤٦۰۹۷۰ عدد په عمودي ډول تفریق کړئ.

**حل:**

۳ ۵ ۶ ۷ ۲ ۱ ۳ ۰ ۴ ۶ ← مفروق منه

مفروق → ۲ ۱ ۳ ۲ ۴ ۶ ۰ ۹ ۷ ۰ −

۱ ۴ ۳ ۴ ۷ ۵ ۲ ۰ ۷ ۶ ← د تفریق حاصل

**دویم مثال:** د هر ستون د عددونو د تفریق حاصل پیدا کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| مفروق منه | ۵۷۱۵۳۶۳۵۱۲ | ۳۴۶۵۸۰۰۰۴۲ | ۴۹۸۸۰۰۲۴۹۷ |
| مفروق | − ۱۲۴۰۱۷۹۳۰۰ | − ۱۴۰۳۰۱۲۱۱۰ | − ۲۴۵۳۱۴۲۹۰۵ |
| دتفریق حاصل | ۴۴۷۵۱۸۴۲۱۲ | ۲۰۶۲۷۸۷۹۳۲ | ۲۵۳۴۸۵۹۵۹۲ |

**دریم مثال:** د دوو عددونو د جمعي حاصل ۸۵۳۱۹۰۰۰۴۳ دی که چېرې یو عدد ۵۱۴۹۰۶۴۰۰۰ وي، بل عدد پیدا کړئ.

**حل:**

۸۵۳۱۹۰۰۰۴۳
− ۵۱۴۹۰۶۴۰۰۰
---
۳ ۳۸ ۲۸۳ ۶۰ ۴۳

### فعالیت

**۱- له ۵۸۷۲۴۶۶۹۲۴۵ عدد څخه د ۲۸۹۴۵۳۷۴۰۰ عدد تفریق کړئ.**

۵۸۷۲۴ ۶۶۹۲۴۵
− ۲۸۹۴۵۳۷۴۰۰
---

**۲- د هر ستون د عددونو د تفریق حاصل پیدا کړئ.**

| | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | ۳۹۷۶۵۴۷۸۵۳ | ۶۴۷۸۲۶۵۰۴۹ |
| مفروق | − ۱۹۸۶۱ ۲۵۶۴۰ | −۵۰۷۱۲۹۳۹۵۱ |
| د تفریق حاصل | | |

## کورنی دنده

د لاندې چوکات د تفریق پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | ۳۹۷۶۵۴۷۸۵۳ | ۶۴۷۸۲۶۵۰۴۹ |
| مفروق | − ۱۹۸۶۱ ۲۵۶۴۰ | −۵۰۷۱۲۹۳۹۵۱ |
| د تفریق حاصل | | |

## پوښتني



۱–د (٥١٤٣٢٠١٦٥) عدد له (٩١٢٥٦٩٧٠٤) عدد څخه تفریق کړئ.

۲– د تفریق لاندې پوښتنې حل کړئ:

| | | |
|---|---|---|
| ۴۸۱۳۴۵۷۶۰۲ | ۵۶۰۲۱۵۴۸۴ | ۶۰۷۱۰۵۹۲۳ |
| – ۲۳۷۹۶۲۳۵۸۴ | – ۱۲۵۳۶۴۰۰۰ | – ۱۴۳۵۰۸۷۶ |
| ۷۸۹۶۵۴۰۲۱ | ۵۴۳۰۲۱۶۶۹ | ۲۹۰۰۳۵۴۱۷۵ |
| – ۱۵۲۳۴۰۰۱۲ | – ۲۹۸۵۰۳۴۱ | – ۱۵۶۷۲۱۹۰۴۰ |

۳– د لاندې هر یو ستون د تفریق حاصل لاس ته را وړئ.

| | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | ۳۹۷۶۵۴۷۸۵۳ | ۶۴۷۸۲۶۵۰۴۹ |
| مفروق | – ۱۹۸۶۱ ۲۵۶۴۰ | – ۵۰۷۱۲۹۳۹۵۱ |
| حاصل تفریق | | |

٤– تفریق یې کړئ:

| | | |
|---|---|---|
| ۹۶۸۴۰۰۶۳۲ | ۷۳۹۰۲۵۳۴۱ | ۸۵۹۳۷۸۳۷۰ |
| – ۷۲۱۱۹۷۴۴۳ | – ۳۸۵۰۰۴۲۱۳ | – ۵۴۳۵۰۰۸۴۲ |
| ۸۴۳۴۵۹۰۶۲ | ۵۳۵۷۰۶۸۴۳۲ | ۲۶۲۷۵۶۰۱۰۴ |
| – ۶۰۳۸۳۶۹۰۱ | – ۴۱۴۶۹۳۰۷۸۰ | – ۱۳۹۴۰۱۲۳۵۸ |
| ۷۰۸۴۵۶۷۱۰۴ | ۷۶۷۳۵۴۰۹۱۸ | ۳۵۳۰۰۰۶۷۹۸ |
| – ۹۹۰۱۱۴۵۰۷۳ | – ۶۵۹۸۷۶۶۳۷۵ | – ۱۴۴۹۷۸۸۵۳۶ |

# عبارتي پوښتني



۱- يوه بزگر د خپلو حاصلاتو د خرڅولو له درکه (۱۳۸۴۵۰۰) افغانۍ لاس ته راوړې دي او له دې افغانيو څخه يې يو تراکتور په (۵۳۸۲۱٤) افغانۍ واخيست، معلوم کړئ چې څومره افغانۍ ورسره پاتې دي؟

۲-دوه سوداگر په يوه شرکت کې چې سرمايه يې (۳۱۹٦۵۰۰۰) افغانۍ ده، شريک دي، که چېرې د يوه برخه (۱٦۰۸۳۹۰۰) افغانۍ وي، دبل برخه يې معلومه کړئ؟

۳- د اوبو د برېښنا بند د جوړولو لپاره ۲٤۷٦۹۵۰۰۰۰ افغانۍ سنجول شوي دي، که ددې بند د جوړولو لپاره تر اوسه پورې ۱۳۲۰۵۰۰٦۲۲ افغانۍ خرڅې شوي وي، د بند د جوړولو لپاره نورو څو افغانيو ته اړتيا ده؟

٤- په پاخه ډول د يوه دوه پوړيز جامع جومات د جوړولو لپاره د يوه کلي خلکو ۱۲۵٤٦۲۱ افغانۍ راټولې کړي دي، که چېرې د جومات د جوړولو لپاره ۵۲۵٤۷۳۹ افغانيو ته اړتيا وي، پيدا کړئ چې څومره افغانۍ کمې دي؟

# د تفریق د عملیې امتحان

**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د تفریق د پوښتنې د حل امتحانول څه ګټه لري؟
- ویلای شئ د تفریق عملیې  د حل شوې پوښتنې د امتحانولو لپاره بلې کومې عملیې ته اړتیا شته؟
- که له حلولو څخه وروسته یوه پوښتنه امتحان نه شي، څه تاوان لري.

**لومړی‌مثال:** د تفریق لاندې پوښتنه حل او بیا یې امتحان کړئ.

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | ← | ۲۶۵۸۷۴۳۲۵ |
| مفروق | ← | ۱۲۵۷۱۹۲۴۸ – |
| د تفریق حاصل | ← | ۱۴۰۱۵۵۰۷۷ |

اوس ددې لپاره چې خپل ځان ډاډه کړو چې پورتنۍ پوښتنه سمه حل شوې ده که نه ؟ نو امتحانوو یې.

**امتحان:** د پورتني مثال د امتحانولو لپاره د جمعي عمليې ته اړتيا ده، په دې ډول چې د تفريق حاصل له مفروق سره جمع کوو که د جمعې حاصل يې له مفروق منه سره مساوي شو، پوښتنه په سمه توگه حل شوې ده او که نه، حل يې سم نه دی.

| | |
|---|---|
| ۱۴۰۱۵۵۰۷۷ | ← حاصل د تفريق |
| + ۱۲۵۷۱۹۲۴۸ | ← مفروق |
| ۲۶۵۸۷۴۳۲۵ | ← مفروق منه |

**دويم مثال:** لاندې پوښتنه حل او بيا يې امتحان کړئ

**حل:**

| | |
|---|---|
| ۹۵۰۰۴۸۶۲۷۳ | ← مفروق منه |
| − ۲۷۸۱۵۴۳۹۰ | ← مفروق |
| ۹۲۲۲۳۳۱۸۸۳ | ← د تفريق حاصل |

**امتحان**

د تفريق حاصل له مفروق سره جمع کوو، که مفروق منه لاسته راغی، پوښتنه سمه حل شوې ده او که نه، سمه نه ده.

| | |
|---|---|
| ۹۲۲۲۳۳۱۸۸۳ | ← حاصل د تفريق |
| + ۲۷۸۱۵۴۳۹۰ | ← مفروق |
| ۹۵۰۰۴۸۶۲۷۳ | ← مفروق منه |

## فعالیت

- لاندې پوښتنه حل کړئ.

مفروق منه ← ۹۴۲۸۰۰۴۵۸۹

مفروق ← ۶۷۰۵۶۲۰۰۵۱ −

حاصل د تفریق ← ..........................

- له حل کولو څخه وروسته يې امتحان کړئ.

........... ← ..........................

......... ← .......................... +

........... ← ..........................

## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې لومړی حل او بیا يې امتحان کړئ.

۷۳۴۹۰۵۶۰۷

۱۰۸۲۴۳۶۶۵ −

۹۸۵۰۰۷۹۱۴

۳۱۰۶۶۸۳۲۰ −



# پوښتنې



حل يې کړئ

۸۹۷۳۰۵۰۴۲۱<br>
− ۱۵۲۱۳۸۵۹۷۶

۸۵۳۰۰۰۷۲۹<br>
− ۵۱۶۵۴۳۹۰۳

۲۳۹۰۶۵۷۴۳<br>
− ۱۸ ۲۵۹۳۰۰۷

۹۶۵۹۷۲۳۶۰<br>
− ۳۴۰۰۱۸۵۲۱

۷۹۴۳۰۰۱۸۵۳<br>
− ۱۸۷۹۲۶۵۴۲۰

۶۳۰۴۰۱۹۰۵۰<br>
− ۵۲۹۸۷۴۰۲۰۹

۷۹۸۵۲۰۰۸۴۱<br>
− ۱۳ ۶۴۱۰۰۶۵۲

۷۵۴۸۹۵۶۵۲<br>
− ۳۴۲۰۰۸۱۴۰۰

۸۵۳۰۰۰۷۲۹<br>
− ۵۱۶۵۴۳۹۰۳

۶۵۹۷۶۵۰۰۸<br>
− ۵۱۶۵۴۳۹۰۳

۹۸۴۵۹۸۷۴۶۲<br>
− ۳۷۴۶۵۰۰۰۲۱

۸۵۳۰۰۰۷۲۹<br>
− ۱۰۵۶۰۰۳۲۱

# د دوه رقمي عددونو ضرب په دوه رقمي عدد کې

**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د ضرب عملیه بله کومه عملیه اسانوي؟
- که چېرې وغواړو دوه، دوه رقمي عددونه په عمودي توګه ضرب کړو، د ضرب عملیه څنګه پیلوو؟
- ولې ای شیٔ که د ضرب د دویم جزء د لسیز رقم د ضرب د لومړي جزء په یویز رقم کې ضرب کړو، د ضرب حاصل په کوم ځای کې ولیکو؟

**لومړی مثال:** د ٦٧ او ٣٢ عددونو د ضرب حاصل پیدا کړئ.

**حل:**

۶۷ ← د ضرب لومړی جزء

× ۳۲ ← د ضرب دویم جزء

---

۱۳۴ ← ۲× ۶۷

+۲۰۱۰ ← ۳۰× ۶۷

---

۲۱۴۴ ← د ضرب حاصل

**دويم مثال:** د ٩٤ او ٧٨ دوه رقمي عددونه سره ضرب کړئ.

**حل:**

۹۴ ← د ضرب لومړی جزء

× ۷۸ ← د ضرب دويم جزء

۷۵۲ ← ۹۴ × ۸

+۶۵۸۰ ← ۹۴ × ۷۰

۷۳۳۲ ← د ضرب حاصل

**دريم مثال:** په يوه کارتن کې ۳۵ دانې منې دي. په ۱۵ کارتنونو کې څومره منې ځايېږي؟

**حل:**



۳۵

× ۱۵

۱۷۵

+۳۵

۵۲۵

**څلورم مثال:** که د يو کيلو گرام انگورو قيمت ٤٥ افغانۍ وي، د ١٤ کيلو گرامو انگورو قيمت څو افغانۍ کيږي؟

**حل:**

۴۵

× ۱۴

۱۸۰

+۴۵

۶۳۰



## فعالیت

- د لاندې پوښتنو تش ځایونه په مناسبو عددونو ډک کړئ.
- د ضرب حاصل يې پيدا کړئ.

```
  ۲۳                                  ۳۴
× ۱۲                                × ۲۱
-----                               -----
  ۴۶   ⟶  ۲۳ ×....                   ...
+۲۳۰   ⟶  ۲۳ ×....                 + ...
-----                               -----
 ۲۷۶                                 ...
```



## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

```
  ۹۲        ۸۷
× ۲۲      × ۷۸
-----     -----
```



## پوښتنې

د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل لاس ته راوړئ.

```
  ۸۸        ۸۰        ۶۶        ۵۹
× ۵۶      × ۷۰      × ۴۵      × ۷۱
-----     -----     -----     -----
```

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵۸ × ۵۵ | ۸۳ × ۱۸ | ۷۷ × ۵۲ | ۹۰ × ۴۰ |
| ۵۶ × ۳۲ | ۷۴ × ۶۱ | ۴۸ × ۹۲ | ۹۶ × ۶۶ |

## عبارتي پوښتنې

۱- که یوه واکسین کوونکې په یوه ورځ کې ۸۵ کوچینیانو ته واکسین تطبیق کړي، په ۲۲ ورځو کې به څو کوچینانو ته واکسین تطبیق کړي؟

۲- د یو کیلوګرام ناکو قیمت ٦٧ افغانۍ دی، د ۱۲ کیلو ګرامو ناکو قیمت پیدا کړئ.

۳- که یو پانګه وال له ۵۲ غریبو کورنیو سره مالي مرسته وکړي، ۱٤ پانګه وال به له څومره کورنیو سره مرسته وکړي؟

۴- یو ښوال په یوه ورځ کې په منظم ډول د ۲٤ نیالګیو ښاخونه پرې کوي، معلوم کړئ چې په ۱۳ ورځو کې به د څو نیالګیو ښاخونه پرې کړي؟

۵- که د یوې د سلو پاڼو لرونکې کتابچې بیه ۱۳ افغانۍ وي، د ۷۵ جلدو کتابچو قیمت پیدا کړئ.

خوارلسم لوست

# په درې رقمي عدد کې د دوه رقمي عدد ضرب

**پوښتنې**

- که چېرې وغواړو دوه رقمي عدد په درې رقمي عدد کې ضرب کړو، لومړی د ضرب د دویم جزء کوم رقم د ضرب د لومړي جزء په ټولو رقمونو کې ضرب کړو؟
- که د ضرب د دویم جزء د لسیز رقم د ضرب د لومړي جزء د یویز په رقم کې ضرب کړو، د ضرب حاصل باید تر کومې مرتبې لاندې ولیکو؟

**لومړی‌مثال:** د ٤٢ دوه رقمي عدد د ١٦٣ په درې رقمي عدد کې ضرب کړئ.

**حل:** لومړی د ضرب د دویمې جزوې د یویز رقم او بیا یې د لسیز رقم د لومړۍ جزوې په ټولو رقمونو کې ضربوو او حاصل یې تر خط لاندې لیکو، بیا یې جمع کوو د ضرب حاصل په لاس راځي.

$$
\begin{array}{r}
۱۶۳ \\
\times\ ۴۲ \\
\hline
۳۲۶ \\
+\,۶۵۲۰ \\
\hline
۶۸۴۶
\end{array}
$$

۱۶۳ ← د ضرب لومړی جزء

۴۲ ← د ضرب دویم جزء

۳۲۶ ← ۱۶۳ ×۲

۶۵۲۰ ← ۱۶۳ ×۴۰

۶۸۴۶ ← د ضرب حاصل

**دويم مثال:** د کیمیاوي سرې د یوې بورۍ بیه ۸۲۵ افغانۍ ده. د ٤٥ بوریو قیمت پیدا کړئ.

**حل:**

۵۲۸ ⟵ د ضرب لومړی جزء

× ۴۵ ⟵ د ضرب دویم جزء

۲۶۴۰

+۲۱۱۲

۲۳۷۶۰ ⟵ د ضرب حاصل

## فعالیت

- تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

۱۳۴

× ۲۵

۶۷۰ ⟵ ۱۳۴ ×....

+ ۲۶۸۰ ⟵ ۱۳۴ ×....

۳۳۵۰

- لاندي پوښتنه حل کړئ.

۳۱۲

× ۳۱

...

+ ...

...

## کورنۍ دنده

ضرب یې کړئ.

| | |
|---|---|
| ۵۱۳ × ۷۸ | ۹۰۲ × ۶۵ |

## پوښتنې

د ضرب حاصل یې پیدا کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۶۶۲ × ۷۸ | ۳۴۰ × ۲۲ | ۴۰۶ × ۳۱ |
| ۳۷۹ × ۴۰ | ۹۴۵ × ۵۷ | ۵۴۳ × ۶۷ |
| ۷۷۷ × ۸۸ | ۴۰۶ × ۲۴ | ۷۸۶ × ۹۵ |

## عبارتي پوښتنې

۱- که د یوه من منو قیمت ۳۲۰ افغانۍ وي، د ۱۷ منو، منو قیمت پیدا کړئ.

۲- یوه سړي د چرګانو د فارم د جوړولو لپاره ۴۲۳ چرګوړي راونیول، که هر چرګوړی یې په ۹۵ افغانۍ اخیستی وي، د فارم په جوړولو یې څومره افغانۍ خرڅ کړي دي؟

۳- یو سړی غواړي چې له خپلې یوې تړتپې ځمکې څخه باغ جوړ کړي، ددې کار لپاره ۲۸۰ میوه لرونکو نیالګیو ته اړتیا ده. که د یوه نیالګي قیمت ۹۵ افغانۍ وي، نوموړی سړی ددې باغ د جوړولو لپاره څو افغانیو ته اړتیا لري؟

۴- یوه بڼوال له خپل بڼ څخه ۲۱۰ کیلوګرامه انګور حاصل اخیستی دی. که یو کیلوګرام یې په ۴۵ افغانۍ خرڅ کړي وي، بڼوال څو افغانۍ لاسته راوړې دي؟

۵- یو سړی یو نوی کور جوړوي چې ۱۸ کړکیو ته اړتیا لري، که ترکاڼ هره کړکۍ په ۸۵۰ افغانیو جوړه کړي، د ترکاڼ مزدوري څو افغانۍ کیږي؟

# په څلور رقمي عدد کې د دوه رقمي عدد ضرب

**پوښتنې**

- که چېرې د ضرب د دویم جزء د یویزو رقم ٤ وي او موږ هغه د ضرب په لومړي جزء کې ضرب کړو، کولای شئ ووایئ چې په حقیقت کې د ضرب لومړی جزء په څو کې ضرب شوی دی؟
- که چېرې د ضرب د دویم جزء د لسیزو رقم ٧ وي او موږ هغه د ضرب په لومړي جزء کې ضرب کړو، په دې صورت کې ویلای شئ چې په حقیقت کې د ضرب لومړی جزء په څو کې ضرب شوی دی؟

**لومړی مثال:** د ٢٣٤١ څلور رقمي عدد د ٣٢ په دوه رقمي عدد کې ضرب کړئ.

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| | ۲۳۴۱ | ← د ضرب لومړی جزء |
| | × ۳۲ | ← د ضرب دویم جزء |
| ۲ × ۲۳۴۱ → | ۴۶۸۲ | |
| ۳۰ × ۲۳۴۱ → | + ۷۰۲۳۰ | |
| | ۷۴۹۱۲ | ← د ضرب حاصل |

**دويم مثال:** د يوې بورۍ اوړو قيمت ۱ ۲ ۸ ٦ افغانۍ دی. د ۱ ۸ بوريو اوړو قيمت پيدا کړئ.

**حل:**

$$
\begin{array}{r}
۱۲۸۶ \\
\times \quad ۱۸ \\
\hline
۱۰۲۸۸ \\
+۱۲۸۶\phantom{۰} \\
\hline
۲۳۱۴۸
\end{array}
$$

## فعالیت

- په تشو ځايونو کې مناسب عددونه وليکئ؟

$$
\begin{array}{r}
۱۲۵۴ \\
\times \quad ۴۳ \\
\hline
۳۷۶۲ \longrightarrow ....\times ۱۲۵۴ \\
+۵۰۱۶۰ \longrightarrow ....\times ۱۲۵۴ \\
\hline
۵۳۹۲۲
\end{array}
$$

- لاندې پوښتنه حل کړئ.

$$
\begin{array}{r}
۵۰۶۴ \\
\times \quad ۷۲ \\
\hline
... \\
+ \quad ... \\
\hline
...
\end{array}
$$



## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۶۰۰۳ | ۱۷۴۹ | ۷۳۰۴ | ۹۲۴ |
| × ۴۵ | × ۵۰ | × ۹۳ | × ۸۰ |



## پوښتنې

لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲۹۵ | ۲۸۶۱ | ۴۰۳۸ |
| × ۱۲ | × ۲۹ | × ۶۱ |
| ۸۴۰۰ | ۷۰۰۵ | ۱۰۰۰ |
| × ۷۸ | × ۴۳ | × ۹۹ |
| ۳۶۰۴ | ۵۱۳۰ | ۷۳۲۶ |
| × ۴۳ | × ۸۴ | × ۱۰ |

## عبارتي پوښتنې

۱- یوه سوداګر له ۹۵ غریبو کورنیو سره په برابر ډول نقدي مرسته کړې ده، که له هرې کورنۍ سره یې ۸۵۰۰ افغانۍ مرسته کړې وي، معلوم کړئ چې نوموړي ټولې څو افغانۍ مرسته کړې ده؟

۲- که د یوه ترکاڼ ورځنۍ اجوره ۱۱۵۰ افغانۍ وي، د ۱۵ ورځو اجوره یې پیدا کړئ.

۳- یوه مال لرونکي سړي ۳۵ پسونه خرڅ کړي دي، که یو پسه یې په ۸۲۵۰ افغانۍ خرڅ کړی وي، نوموړي ټولې څو افغانۍ لاسته راوړې دي؟

۴- که د یوه بایسکل قیمت ۲٤٦۰ افغانۍ وي، د ٤۵ بایسکلونو قیمت څو کیږي؟

۵- یوه بزګر ۷۲ بورۍ کچالو خرڅ کړي دي. که هره بورۍ یې په ۱۳۸۵ افغانیو خرڅه کړې وي، څو افغانۍ یې لاسته راوړې دي؟

۶- یوه سوداګر له یوه لومړني ښوونځي سره ۹۵ میزونه مرسته کړې ده. که د هر میز قیمت ۱۰۵۰ افغانۍ وي، معلوم کړئ چې نوموړي سوداګر څو افغانۍ مرسته کړې ده؟

۷- یوه پانګه وال په مساوي ډول له ۸۳ کورنیو سره د اوړو یوه، یوه بورۍ مرسته کړې ده، که د هرې بورۍ قیمت ۱۲۸۰ افغانۍ وي، نو پیدا کړئ چې پانګه وال ټولې څو افغانۍ مرسته کړې ده؟

شپاړسم لوست

# په څو رقمي عدد کې د دوه رقمي عدد ضرب

**پوښتنې**

- که وغواړئ چې یو دوه رقمي عدد په څو رقمي عدد کې ضرب کړئ، د ضرب عملیه څرنګه پیل کوئ؟
- ویلای شئ په دویم پړاو کې څنګه عمل سرته رسوئ؟
- ستاسو په نظر بیا باید څه وکړو؟ ترڅو د ضرب عملیه سرته ورسیږي.

**لومړی مثال:** د ٤٦ عدد له ١٣٨٥٢ عدد سره ضرب کړئ.

**حل:**

۱۳۸۵۲ ← د ضرب لومړی جزء

× ۴۶ ← د ضرب دویم جزء

۸۳۱۱۲ ← ٦ × ۲۳۴۱

\+ ۵۵۴۰۸۰ ← ۴۰ × ۲۳۴۱

۶۳۷۱۹۲ ← د ضرب حاصل

لیدل کیږي چې د دویم ضربي جز د یویز رقمونه د لومړني ضربي جز په ټولو رقمونو کې ضربیږي او د ضرب حاصل د خط لاندې لیکل کیږي، بیا د دویم ضربي جز لسیز رقم د لومړني ضربي جز په ټولو رقمونو کې ضربیږي او د لومړني ضرب حاصل لاندې لیکل کیږي او له جمع کولو څخه یې د ضرب حاصل لاس ته راځي.

**دويم مثال:** که په یوه کلي کې ۱۲۳۷۵ کورنۍ استوګنه ولري او یوه خیریه موسسه له هرې کورنۍ سره ۱۵ منه غنم مرسته وکړي، معلوم کړئ چې دې موسسې څو منه غنم مرسته کړې ده؟

**حل:**

$$
\begin{array}{r}
۱۲۳۷۵ \\
\times \quad ۱۵ \\
\hline
۶۱۸۷۵ \\
+۱۲۳۷۵\phantom{0} \\
\hline
۱۸۵۶۲۵
\end{array}
$$

## فعالیت

- په تشو ځایونو کې مناسب عددونه ولیکئ.

$$
\begin{array}{r}
۲۳۱۵۴ \\
\times \quad ۳۲ \\
\hline
۴۶۳۰۸ \\
+۶۹۴۶۲\phantom{0} \\
\hline
۷۴۰۹۲۸
\end{array}
$$

۴۶۳۰۸ ← ....× ۱۲۵۴

۶۹۴۶۲ ← ....× ۱۲۵۴

- لاندې پوښتنه حل کړئ.

$$
\begin{array}{r}
۸۶۹۵۴ \\
\times \quad ۳۷ \\
\hline
\ldots\ldots\ldots \\
+ \ \ldots\ldots\ldots \\
\hline
\ldots\ldots\ldots\ldots
\end{array}
$$



## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ:

۵۲۰۵۷۶ × ۴۳

۴۳۲۹۸۷۱ × ۵۲

۶۵۹۴۳۷۳ × ۹۳



## پوښتنې

لاندې عددونه ضرب کړئ:

۱۲۴۸۳ × ۳۱

۲۳۰۵۴ × ۴۲

۴۰۰۹۵ × ۱۱

۸۴۶۱۳ × ۲۸

۷۳۵۴۰ × ۳۳

۷۰۴۰۹ × ۲۸

۳۵۷۲۱۴۰ × ۳۲

۱۶۳۲۱۹۴ × ۶۵

۲۵۸۷۹۳۶ × ۴۶

# عبارتي پوښتنې

۱- يو سړی د ښاروېيو زراعتي فارم لري، که ورځنی خرڅ يې ٣٢١٤ افغانۍ وي، د يوې مياشتې (٣٠) ورځو خرڅ يې پيدا کړئ.

۲- که د بوټونو د جوړولو فابريکه هره ورځ ٧٢٢٢١ جوړې بوټونه جوړ کړي. په ٢٤ ورځوکې څو جوړې بوټونه جوړولای شي؟

۳- يوه بڼوال ٥١٢٤٠ کيلوگرام انگور يو کيلوگرام په ٤٥ افغانۍ خرڅ کړي دي، بڼوال ټولې څو افغانۍ لاسته راوړې دي ؟

۴- يوه مال لرونکي ٢٥ پسونه خرڅ کړل، که يو پسه يې په ٦٨٩٠ افغانيو خرڅ کړی وي، ټولې څو افغانۍ کيږي؟

۵- که له کابل څخه تر کندهاره پورې د طيارې د يو کس د ټکټ قيمت ٣٤١٢ افغانۍ وي، د ٨٦ مسافرو د ټکټونو قيمت څو کيږي؟

۶- ١١ سوداگر په يوه شرکت کې په مساوي ډول برخه لري. که هر سوداگر ١١٤٩٣٥ افغانۍ شريکې کړې وي، د شرکت پانگه معلومه کړئ.

۷- په يوه ساختماني شرکت کې ١٨ انجينران کار کوي، که د يوه انجنير کلنۍ تنخا ١٤٧٥٩٢٠ افغانۍ وي، د ټولو انجنيرانو کلنۍ تنخوا پيدا کړئ؟

## اووه لسم لوست

# په دوه رقمي عدد باندې د دوه رقمي عدد وېش

**پوښتنې**

- که چېرې د دوه رقمي عدد وېش په دوه رقمي عدد باندې يوه پوښتنه راکړل شي، ترڅو موږ هغه حل کړو. د وېش د عمليې له سرته رسولو څخه مخکې د مقسوم او مقسوم عليه په برخه کې بايد څه رنګه فکر وکړو؟
- که چېرې له فکر کولو څخه وروسته پوه شو د مثال په ډول په هغه وېش کې چې مقسوم عليه (۵) واړې يا په تقريبي ډول او يا په پوره ډول په مقسوم کې شامل وي، دغه عدد چې د وېش حاصل (خارج قسمت) نوميږي د وېش د علامې په کومه برخه کې بايد وليکو؟
- له فکر کولو وروسته مو کله چې خارج قسمت پيدا کړ، د وېش پاتې عمليه بايد څرنګه مخ ته يوسو.

**لومړی مثال:** د ۸۹ دوه رقمي عدد د ۱۱ پر عدد چې هغه هم دوه رقمي دی وويشئ.

**حل:**



**دويم مثال:** یوه سرې ۹۰ ډوډۍ پر ۱۵ غریبانو په مساوي ډول وویشلې، هر یوه ته څو ډوډۍ ورکړل شوي دي؟

**حل:**

مقسوم ← ۹۰ | ۱۵ → مقسوم علیه

\- ۹۰ | ۶ → د ویش حاصل

پاتې ← ۰

## فعالیت

**د ۸۰ دوه رقمي عدد د ۲۵ پر دوه رقمي عدد باندې وویشئ.**

۸۰ | ۲۵

\- ... | ...

...

## کورنۍ دنده

ويې ویشئ.

۶۵ | ۱۴

۸۴ | ۲۱

۷۳ | ۳۲

# پوښتنې



لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۹۴ ۴۵ | ۳۱ ۱۰ | ۴۵ ۲۲ |
| ۶۷ ۲۱ | ۸۶ ۴۰ | ۷۴ ۳۵ |
| ۴۴ ۲۱ | ۳۴ ۱۱ | ۲۲ ۱۰ |
| ۶۹ ۳۰ | ۶۰ ۱۵ | ۸۳ ۱۳ |
| ۹۳ ۳۱ | ۷۷ ۳۵ | ۷۴ ۲۴ |

# عبارتي پوښتنې



۱- یو سړی ۳۲ داني چاکلیت لري او غواړي چې د خپلې کورنۍ پر (۱۰) غړو یې په مساوي ډول وویشي، د کورنۍ هر غړي ته څو، څو چاکلیت رسیږي او څو ورسره پاتې کیږي؟

۲- یو ښوونکی غواړي چې (۸٤) پاڼې سپین کاغذ په خپلو (۲۱) زده کوونکو په مساوي ډول وویشي، هر زده کوونکي ته څو پاڼې کاغذ رسیږي؟

۳- یوه خیریه بنیاد ۸۰ بورۍ اوړه ۲۰ غریبو کورنیو ته په مساوي ډول وویشل، هرې کورنۍ ته څو بورۍ اوړه ورکړل شوي دي؟

۴- یوه ښوونکي د پنسل ۹۰ قلمونه یوه ټولګي ته چې ٤۵ زده کوونکي لري په مساوي ډول وویشل، هر زده کوونکي ته څو قلمونه ورکړل شوي دي؟

۵- یو بزګر غواړي چې ۸۰ منه غنم اوړه کړي، که د ورځې ۱۰ منه غنم په ژرنده اوړه کړي، نو ټول غنم به په څو ورځو کې اوړه کړي؟

## اتلسم لوست

# په دوه رقمي عدد باندې د درې رقمي عدد ویش

**پوښتنې**

- ولې شئ چې په دوه رقمي عدد باندې د درې رقمي عدد په وېشلو کې باید د وېش عملیه له کومې خوا پیل کړو؟
- که چېرې د مقسوم او مقسوم علیه د یو رقم په پرتله کولو کې ولیدل شي چې د مقسوم یو رقم د مقسوم علیه له رقم څخه لوی دی، څه باید وکړو؟

**لومړی‌مثال:** د ٤٤٧ درې رقمي عدد د ٢١ په دوه رقمي عدد باندې وویشئ.

**حل:**




**دویم مثال:** د سرې میاشتې موسسې ١٢٦ کمپلې ٤٢ غریبو کسانو ته په مساوي ډول وویشلې، هر کس ته څو کمپلې رسیدلې دي؟

## حل

مقسوم ← ۱۲۶ | ۴۲ → مقسوم علیه

۱۲۶ـ | ۳ → د ویش حاصل

.... → پاتې

## فعالیت

لاندې پوښتنې حل کړئ.

۱ـ

مقسوم ← ۳۶۵ | ۳۰ → مقسوم علیه

..ـ | .. → د ویش حاصل

..

..ـ

.. → پاتې

۲ـ

مقسوم ← ۹۷۲ | ۲۵ → مقسوم علیه

..ـ | .. → د ویش حاصل

..

..ـ

.. → پاتې



## کورنۍ دنده

د وېش لاندې پوښتنه حل کړئ.

۸۴۵ | ۸۷



## پوښتنې

وېې وېشئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۴۹۱ \| ۸۵ | ۵۶۳ \| ۹۷ | ۷۳۵ \| ۳۵ |
| ۷۳۵ \| ۳۵ | ۸۲۴ \| ۴۰ | ۶۲۴ \| ۱۷ |
| ۴۸۲ \| ۳۰ | ۷۴۱ \| ۱۷ | ۵۹۴ \| ۴۱ |
| ۴۸۸ \| ۴۴ | ۵۹۴ \| ۵۴ | ۷۸۷ \| ۴۱ |
| ۹۹۰ \| ۲۰ | ۷۷۷ \| ۷۷ | ۱۰۰ \| ۳۳ |

# عبارتي پوښتنې

۱- د یوه ښوونځي د لومړي ټولګي د نویو زده کوونکو د داخلې شمېر (۵۴۰) دی، که چېرې د ښوونځي اداره هغه په مساوي توګه په داسې ډول وویشي چې د هر ټولګي د داخلې شمېر (۴۵) تنه وي، معلوم کړئ چې څو لومړي ټولګي جوړېږي ؟

۲- په یوه فابریکه کې (۱۲) پایې ماشینونه دي چې په هره دقیقه کې (۸۴) متره ټوکر تولید وي، معلوم کړئ چې یوه پایه ماشین په یوه دقیقه کې څو متره ټوکر تولیدوي؟

۳- د واکسیناتورانو یو ټیم په ۹ ورځو کې ۱۲۶ کوچنیان واکسین کړي دي، معلوم کړئ چې په یوه ورځ کې یې څو کوچنیان واکسین کړي دي؟

۴- یوه بڼوال ۶۹۰ میوه لرونکي نیالګي په ۱۵ پټیو کې په مساوي ډول کېنولې دي، په هر پټي کې یې څو نیالګي کینولي دي؟

۵- یوه سړي ۱۵ کتابچې په ۸۴۰ افغانیو اخیستې دي، د یوې کتابچې قیمت پیدا کړئ.

۶- یوه دوکاندار ۱۰ منه پیاز په ۹۹۰ افغانیو خرخ کړي دي، یو من پیاز یې په څو افغانیو خرخ کړي دي؟

# په دوه رقمي عدد باندې د څلور رقمي عدد وېش

## پوښتنې

- ولې د وېش د عمليې په پيل کې لومړی د مقسوم ارقام د مقسوم عليه له ارقامو سره له کوم لوري او څه ډول پرتله کوو؟
- ستاسو په نظر دا کار د وېش د عمليې په سرته رسولو کې څومره تاثير لري؟

**لومړی مثال:** د ۳۲۱٤ څلور رقمي عدد د ۲۵ په دوه رقمي عدد باندې ووېشئ.

**حل:**

۳۲۱۴ | ۲۵ ← مقسوم عليه (مقسوم ← ۳۲۱۴)
‎-۲۵ | ۱۲۸ ← خارج قسمت
۷۱
‎-۵۰
۲۱۴
‎-۲۰۰
۱۴ ← پاتې

**دويم مثال:** يوه ژرنده په هرو ۱۲ دقيقو کې يو من غنم اوړه کوي، معلوم کړئ چې په ۲۵۳۲ دقيقو کې به څو منه غنم اوړه کړي؟

## حل

مقسوم علیه ← ۱۲ | ۲۵۳۲ → مقسوم

خارج قسمت ← ۲۱۱ | ۲۴ −

۱۳

۱۲ −

۱۲

۱۲ −

باقیمانده ← ۰۰

### فعالیت

په خپلو ډلو کې یو د بل په مشوره د ۷٤۲۳ څلور رقمي عدد پر ۳۵ دوه رقمي عدد باندې وویشئ.

مقسوم علیه ← ۳۵ | ۷۴۲۳ → مقسوم

خارج قسمت ← ... | ... −

...

... −

...

... −

پاتې ← ...



## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۷۲۹۴ \| ۳۱ | ۹۴۹۸ \| ۴۵ |



## پوښتنې

وېشئ:

| | | |
|---|---|---|
| ۱۵۶۰ \| ۷۸ | ۳۲۶۳ \| ۸۷ | ۱۳۱۱ \| ۲۳ |
| ۵۵۲۳ \| ۵۰ | ۷۳۲۴ \| ۷۱ | ۹۴۹۸ \| ۴۵ |
| ۴۷۶۵ \| ۵۸ | ۱۶۷۴ \| ۵۴ | ۳۷۹۵ \| ۲۵ |
| ۸۷۷۸ \| ۸۸ | ۴۵۵۵ \| ۴۱ | ۷۲۹۴ \| ۳۱ |

# عبارتي پوښتنې

۱- یو بزګر په (۸۸) دقیقو کې یو جریب ځمکه یوې کوي، معلوم کړئ چې په (۲۲۰۰) دقیقو کې به څو جریبه ځمکه یوې کړي؟

۲- یوه سوداګر (۳۴۹۵) کیلوګرامه میوه په (۱۵) دوکاندارانو په مساوي ډول خرڅه کړې ده، په هر دوکاندار یې څو کیلوګرامه میوه خرڅه کړې ده؟

۳- د کابل او هرات ترمنځ واټن ۱۲۰۰ کیلومتره دی، که یو موټر په یوه ساعت کې ۸۰ کیلو متره لار ووهي، دا موټر به له څو ساعتونو وروسته د هرات ښار ته ورسیږي؟

۴- یوه دوکاندار ۲۵ منه کچالو په ۳۷۵۰ افغانیو خرڅ کړي دي، معلوم کړئ چې یو من کچالو یې په څو افغانیو خرڅ کړي دي؟

۵- یو واکسیناتور په یوه ورځ کې ۵۰ کوچنیان واکسین کوي، نو ۲۴۰۰ کوچنیان به په څو ورځو کې واکسین کړي؟

# د ضرب د عمليې امتحان

**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د ضرب د يوې حل شوې پوښتنې د امتحانولو لپاره کومې عمليې ته اړتيا شته؟
- ويلای شئ د دې عمليې اجزاوې څنګه وټاکو؟
- د ضرب عمليې له سرته رسولو څخه وروسته به څنګه پوه شو چې پوښتنه سمه حل شوې ده ، که نه؟

**مثال:** لاندې پوښتنه حل او بيا يې امتحان کړئ.

**حل:**

$$\begin{array}{r} ۳۶۵ \\ \times \quad ۲۱ \\ \hline ۳۶۵ \\ +۷۳۰\phantom{0} \\ \hline ۷۶۶۵ \end{array}$$

د ضرب د پوښتنې د حل د امتحانولو لپاره د وېش عمليې ته اړتيا لرو، په دې ډول چې د ضرب حاصل پر يو ضربي جز باندې ويشو، که د ضرب بل جز په لاس راشي، نو پوښتنه سمه حل شوې ده او که نه، پوښتنه سمه نه ده حل شوې.

## امتحان:

| | | |
|---|---|---|
| د ضرب دویم جزء ← | ٢١ | ٧٦٦٥ → د ضرب حاصل |
| د ضرب لومړی جزء ← | ٣٦٥ | ٦٣- |
| | | ١٣٦ |
| | | ١٢٦- |
| | | ١٠٥ |
| | | ١٠٥- |
| پاتې ← | | ... |

د ضرب لومړی جزء = د ضرب دویم جزء ÷ د ضرب حاصل

### فعالیت

لاندې پوښتنه حل او بیا یې امتحان کړئ.

٢۴٨٩

× ٣٧

...

+ ...

....

**امتحان:**



## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل او بيا يې امتحان کړئ.








## پوښتنې

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۸۰۷ × ۹۰ | ۳۹۵ × ۶۴ | ۷۵۸ × ۶۵ |
| ۵۱۸ × ۹۶ | ۹۰۰ × ۵۷ | ۶۰۲ × ۷۱ |
| ۷۸۷ × ۵۵ | ۷۰۹ × ۹۷ | ۸۶۵ × ۹۹ |
| ۴۵۱ × ۵۱ | ۷۱۸ × ۱۹ | ۷۶۳ × ۳۸ |

پووېشتم لوست

# د وېش د عمليې امتحان

## د وېش د هغې عمليې امتحانول چې پاتې ونه لري

**پوښتنې**

- ويلاى شئ چې د وېش د پوښتنې د امتحانولو لپاره بلې کومې عمليې ته اړتيا ده؟
- ستاسو په نظر د دې عمليې اجزاوې به کومې وي؟
- څوک ويلاى شي د وېش عمليې له سرته رسولو څخه وروسته د پوښتنې د سموالي په برخه کې په څه ډول نتيجه واخلي؟

**مثال:** لاندې پوښتنه حل او بيا يې امتحان کړئ..

**حل:**

مقسوم ← ۷۵۲ | ۴۷ → مقسوم عليه

$-$۴۷ | ۱۶ → د وېش حاصل

۲۸۲

$-$۲۸۲

... → پاتې

د وېش د عمليې د امتحانولو لپاره د ضرب عمليې ته اړتيا لرو. په دې ډول چې د وېش حاصل په مقسوم عليه کې ضربوو، که مقسوم لاس ته راغی پوښتنه سمه حل شوې ده او که نه، تېروتنه شوې ده.

**امتحان:**

$$
\begin{array}{r}
۴۷ \\
\times\ ۱۶ \\
\hline
۲۸۲ \\
+\ ۴۷\ \ \\
\hline
۷۵۲
\end{array}
$$

۴۷ ← مقسوم علیه

۱۶ ← د ویش حاصل

۷۵۲ ← مقسوم

مقسوم = د ویش حاصل × مقسوم علیه

## فعالیت

لاندي پوښتنه حل او بیا يې امتحان کړئ.

$$
\begin{array}{r|l}
۱۱۱۰ & ۷۴ \\
\hline
-... & ... \\
\hline
... & \\
-... & \\
\hline
... & \\
-... & \\
\hline
... &
\end{array}
$$

**امتحان:**

...

× ...

---

...

+ ...

---

....

## کورنی دنده

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

۶۸۲ | ۳۱

۳۰۰ | ۲۵

۱۰۰۰ | ۱۵



# پوښتنې



لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۸۰ ⟌ ۱۵ | ۴۵۰ ⟌ ۳۰ | ۱۱۸۰ ⟌ ۵۹ |
| ۱۱۲۱ ⟌ ۱۹ | ۸۶۸ ⟌ ۶۲ | ۸۳۳ ⟌ ۴۹ |
| ۱۲۵۸ ⟌ ۳۷ | ۱۰۵۰ ⟌ ۴۲ | ۳۳۸۸ ⟌ ۷۷ |
| ۲۲۹۶ ⟌ ۵۶ | ۱۵۴۵ ⟌ ۱۵ | ۱۳۳۹۰ ⟌ ۱۳ |
| ۴۰۸۰ ⟌ ۲۰ | ۱۸۳۶ ⟌ ۱۸ | ۲۵۵۰ ⟌ ۲۸ |

دوه ویشتم لوست

# د ویش د عملیې امتحان چې پاتې ولري

**پوښتنې**

- ویلای شئ چې د ویش د هغې پوښتنې امتحانول چې پاتې ولري، د هغه پوښتنې له امتحانولو سره چې باقي ونه لري، توپیر لري که نه؟
- ستاسو په نظر دا توپیر به څو وي؟

**مثال:** د ۹۰۲ درې رقمي عدد د ۳٦ پر دوه رقمي عدد باندې وویشئ او بیا یې امتحان کړئ.

**حل:**




خرنګه چې لیدل کیږي دا د ویش یوه داسې پوښتنه ده چې پاتې لري، د دې ډول پوښتنو د امتحانولو لپاره مقسوم علیه د ویش په حاصل کې ضربوو او پاتې ورسره جمع کوو، که مقسوم لاس ته راشي، پوښتنه سمه حل شوې ده، که نه تېروتنه شوې ده.

**امتحان:**

مقسوم علیه ← ۳۶
د ویش حاصل ← ۲۵ ×

```
   ۳۶
×  ۲۵
------
  ۱۸۰
+ ۷۲
------
  ۹۰۰
+   ۲
------
  ۹۰۲
```

باتي ← ۲
مقسوم ← ۹۰۲

مقسوم = باتي + د ویش حاصل × مقسوم علیه

## فعالیت

لاندې پوښتنه حل او بیا یې امتحان کړئ.

```
۱۴۹۶ | ۴۲
-... |----
---- | ...
 ...
-...
----
  ...
 -...
-----
  ...
```

**امتحان:**

...

× ...

...

\+ ...

....

## کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

۵۶۳ | ۵۱

۷۸۶ | ۳۵

۵۷۶ | ۳۴





## پوښتنې

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۹۷۸ ۴۱ | ۶۷۲ ۵۴ | ۸۵۴ ۲۱ |
| ۲۸۳۱ ۶۹ | ۵۶۰۵ ۸۰ | ۶۹۹ ۳۳ |
| ۵۲۰ ۴۷ | ۲۱۸۰ ۶۶ | ۲۰۹۵ ۹۵ |
| ۱۲۳۴ ۱۲ | ۵۱۶۱ ۱۶ | ۲۱۶۱ ۵۵ |
| ۴۵۶۷ ۴۵ | ۸۹۰۱ ۸۸ | ۷۵۶۱ ۴۴ |

## دریم څپرکی

# هندسه

### د مثلث، مربع، مستطیل، پنځه ضلعي او شپږ ضلعي د محیط پیدا کول



# د مثلث د محیط پیدا کول

**پوښتنې**

- ویلای شئ چې مثلث څو ضلعې لري؟
- څوک ویلای شي چې یو مثلث څو زاویې او څو راسونه لري؟
- ستاسو په نظر د مثلث محیط څنګه پیدا کولای شو؟

**مثال:** د ( ا ب ج د مثلث محیط پیدا کړئ




**حل**

(ج ا) ضلعه + (ب ج) ضلعه + (ا ب) ضلعه = د مثلث محیط

۷ سانتي متره+ ۶ سانتي متره + ۴ سانتي متره =

۱۷ سانتي متره = د مثلث محیط

د دې لپاره چې د یوه مثلث محیط پیدا کړو، د درې واړو ضلعو اوږدوالی یې سره جمع کوو، د مثلث محیط پیدا کیږي.

## فعالیتونه

۱-

- د ( ا ب ج) د مثلث د ضلعو اوږدوالی پیدا کړئ.
- ددې مثلث محیط هم پیدا کړئ.




۲- که د ( ا ب ج) د مثلث د ضلعو اوږدوالی په لاندې ډول راکړل شوی وي:

۵ سانتي متره = ( ا ب )

٤ سانتي متره = (ج ب)

٦ سانتي متره = (ج ا)

ددې مثلث محیط پیدا کړئ.

## کورنۍ دنده



- په خپلو کتابچو کې یو اختیاري مثلث رسم کړئ.
- د هرې ضلعې اوږدوالی یې د خط کش په مرسته پیدا کړئ.
- ددې مثلث محیط پیدا کړئ.



## پوښتنې

**۱**– درې اختیاري مثلثونه رسم او د ضلعو اوږدوالی یې د خط کش پواسطه اندازه او بیا د مثلثونو محیط پیدا کړئ.

**۲**– هر مثلث شکله شی چې په خپل چاپیریال کې وینئ چې د ضلعو اوږدوالی یې د اندازه کولو وړ وي، محیط یې پیدا کړئ.

**۳**– لومړی د لاندېنیو مثلثونو د اضلاعو اوږدوالی د خط کش په واسطه معلوم کړئ، بیا د هغوی محیطونه پیدا کړئ.



# د مستطیل د محیط پیدا کول

**پوښتنې**

- ویلای شئ چې مستطیل څو ضلعې او څو زاویې لري؟
- څه فکر کوئ چې د مستطیل ټولې ضلعې سره مساوي دي، که نه؟
- ستاسو په نظر د مستطیل محیط څرنګه پیدا کولای شو؟

**لومړی مثال:** د ( ا ب ج د ) د مستطیل محیط پیدا کړئ.




**حل:**

(د ا) ضلعه + (ج د) ضلعه + (ب ج) ضلعه +(ا ب) ضلعه = د (ا ب ج د) مستطیل محیط

۳ سانتي متره + ۶ سانتي متره + ۳ سانتي متره + ۶ سانتي متره =

۱۸ سانتي متره = د (ا ب ج د) مستطیل محیط

**دویم مثال:** که د یوه مستطیل اوږدوالی ۷ سانتي متره او سور یې ٤ سانتي متره وي، محیط یې پیدا کړئ.






**حل:** خرنګه چې پوهیږو هر مستطیل دوه اوږدوالي او دوه سورونه لري چې اوږدوالی له اوږدوالي سره او سورونه له سورونو سره مساوي دي، نو لیکلای شو چې:

۴ سانتي متره + ۷ سانتي متره + ۴ سانتي متره + ۷ سانتي متره = د مستطیل محیط

۲۲ سانتي متره =

## فعالیت

**د ( ا ب ج د ) د مستطیل محیط پیدا کړئ چې اوږدوالی ۱۰ سانتي متره او سور يي ٦ سانتي متره وي.**





## کورنۍ دنده

دلاندې مستطیل محیط پیدا کړئ.






## پوښتنې

۱- یوه سپینه پاڼه چې د مستطیل شکل لري، او ږدوالی او سورېې اندازه او محیط یې پیدا کړئ؟

۲- د خپل مېز د سطحې محیط پیدا کړئ؟

۳- د خپل ټولګي د تورې درې محیط پیدا کړئ؟

٤- له کاغذ څخه په مختلفو اندازو سره مستطیلونه جوړ کړئ او بیا یې محیط پیدا کړئ.

٥- د هغه مستطیل محیط پیدا کړئ چې اوږدوالی یې ۱۵ سانتي متره او سور یې ۱۰ سانتي متره وي.

۶- که د یوه مستطیل اوږدوالی ۹ سانتي متره او سور یې ۷ سانتي متره وي محیط یې پیدا کړئ.

۷- یوه ټوټه ځمکه چې د منظم مستطیل شکل لري، کهددې ځمکې اوږدوالی ۲۵ متره او سور یې ۱۵ متره وي، ددې ځمکې محیط به څو متره وي؟

۸- د خپل ریاضي کتاب د پوښ اوږدوالی او سور د خط کش په مرسته اندازه او بیا یې محیط پیدا کړئ.



# د مربع د محیط پیدا کول

**پوښتنې**

- ویلای شئ چې مربع څو ضلعې او څو زاویې لري؟
- ستاسو په نظر د مربع د ټولو ضلعو اوږدوالی سره مساوي دی او که توپیر لري؟
- ویلای شئ د مربع محیط څرنګه پیدا کیږي؟

**لومړي مثال:** د لاندې مربع محیط پیدا کړئ.




**حل:** ددې لپاره چې د پورتنی مربع محیط پیدا کړو، د ضلعو اوږدوالی یې سره جمع کوو:

۴ سانتي متره + ۴ سانتي متره + ۴ سانتي متره + ۴ سانتي متره = د(ا ب ج د) مربع محیط

۱۶ سانتي متره = د( ا ب ج د ) مربع محیط

**دویم مثال:** که د ( و ز ح ط ) مربع د ضلعې اوږدوالی ٦ سانتي متره وي، ددې مربع محیط پیدا کړئ.

**حل:** څرنګه چې پوهیږو چې د مربع ټولې ضلعې سره مساوي دي او د هرې ضلعې اوږدوالی يې ٦ سانتي متره دی، نو د نورو درې واړو ضلعو اوږدوالی يې هم ٦ سانتي متره دی، نو ددې مربع محیط دا ډول پیدا کیږي.

۶ سانتي متره + ۶ سانتي متره + ۶ سانتي متره + ۶ سانتي متره = د ( و ز ح ط ) مربع محیط

۲۴ سانتي متره = د ( و ز ح ط ) مربع محیط

**فعالیت**

**- په خپلو ډلو کې له یو بل سره په مشوره د لاندې مربع محیط پیدا کړئ.**




**-له کاغذ څخه یوه اختیاري مربع جوړه کړئ، د یوې ضلعې اوږدوالي يې د خط کش په واسطه پیدا کړئ او بیا يې محیط هم پیدا کړئ.**

## کورنی دنده

د لاندې مربع محیط پیدا کړئ:




## پوښتنې

۱- د داسې مربع محیط پیدا کړئ چې هره ضلعه یې ۵ سانتي متره وي.
۲- د ( ا ب ج د ) مربع راکړل شوې ده، که د (ا ب) ضلعې اوږدوالی ۷ سانتي متره وي، ددې مربع محیط پیدا کړئ.
۳- له کاغذ څخه په مختلفو اندازو سره ٤ مربع ګانې جوړې کړئ، بیا د مربع ګانو د ضلعو اوږدوالی د خط کش په واسطه پیدا کړئ او بیا یې محیطونه هم پیدا کړئ.
٤- د ( ا ب ج د ) مربع په پام کې ونیسئ، که د (ج د) د ضلعې اوږدوالی ۸ سانتي متره وي، ددې مربع محیط پیدا کړئ.
۵- د هغې مربع محیط پیدا کړئ چې د یوې ضلعې اوږدوالی یې ۱۲ سانتي متره وي.
٦- د ( ح خ د ذ ) مربع په پام کې ونیسي که د (خ د) ضلعه یې ۱۵ سانتي متره وي، ددې مربع محیط پیدا کړئ.

**۷**- د لاندې مربع گانو محيط پيدا کړئ.









# د پنځه ضلعي د محیط پیدا کول

- ستاسو په نظر هغه هندسي شکل چې پنځه ضلعې او پنځه زاویې ولري د څه په نامه یادیږي؟
- څه فکر کوئ د پنځه ضلعي ټولې ضلعې سره مساوي او موازي وي او یا کیدای شي چې توپیر ولري؟
- ویلای شئ چې د پنځه ضلعي محیط څنګه پیدا کیږي.

**لومړی مثال:** د (ا ب ج د ه) د پنځه ضلعي محیط پیدا کړئ.




**حل:** د پنځه ضلعي د ټولو ضلعو اوږدوالی سره جمع کوو، محیط یې لاس ته راځي.

هـا + د هـ + ج د + ب ج + ا ب = د (ا ب ج د هـ) د پنځه ضلعي محیط

۲ سانتي متره + ۳ سانتي متره + ۴ سانتي متره + ۳ سانتي متره + ۳ سانتي متره = د (اب ج د هـ) د پنځه ضلعي محیط

۱۵ سانتي متره =

## فعالیت

۱ - په خپلو ډلو کې د یو بل په مشوره سره د ( و ز ح ط ی ) پنځه ضلعي محیط پیدا کړئ.




۲- له کاغذ څخه یوه پنځه ضلعي جوړه کړئ، بیا یې د خط کش په واسطه د ضلعو اوږدوالی پیدا کړئ او بیا یې محیط پیدا کړئ.



## دویم مثال

د ( ا ب ج د ه ) د پنځه ضلعي محیط په داسې ډول پیدا کړئ چې ( ا ب) ۳ سانتي متره، ( ب ج) ٤ سانتي متره، ( ج د ) ۵ سانتي متره، (د ه ) ٤سانتي متره او (هـ ا ) ۳ سانتي متره وي.

## حل

هـ ا + د هـ + ج د + ب ج + ا ب = د ( ا ب ج د ه ) د پنځه ضلعي محیط

۱۹ سانتي متره = ۳ + ٤ + ۵ + ٤ + ۳ =



## کورنۍ دنده

د (ه و ز ح ط) پنځه ضلعي محیط پیداکړئ.



# د شپږ ضلعي د محیط پیدا کول

- ویلای شئ چې کوم هندسي شکل ته شپږ ضلعي وايي؟
- څه فکر کوئ چې هر وخت د يوې شپږ ضلعي ټولې ضلعې سره مساوي وي يا نه ؟
- څوک ویلای شي چې د يوې شپږ ضلعي محيط څنګه پيدا کيږي؟

**مثال:** د (ا ب ج د ه و) د شپږ ضلعي محیط پیدا کړئ.




**حل**

و ا + هـ و + د هـ + ج د + ب ج + ا ب = د( ا ب ج د ه و )د شپږ ضلعي محیط

= ۳ + ۲ + ۳ + ۳ + ۲ + ۳

= ۱۶ سانتي متره

### فعالیت

په خپلو ډلو کې له یو بل سره په مشوره لومړی د خط کش په واسطه د (ا ب ج د هـ و) شپږ ضلعي د ضلعو اوږدوالی اندازه او بیا یې محیط پیدا کړئ.




که چیرې ددې ډول شکلونو د ضلعو شمیر زیات شي په همدې ډول یې محیط پیداکولای شو چې دا شکلونه د مضلع په نامه یادیږي.

## کورنۍ دنده

له کاغذ څخه یوه شپږ ضلعي جوړه کړئ.

- د خط کش په واسطه ددې شپږ ضلعي د ضلعو اوږدوالی پیدا کړئ.
- بیا د شپږ ضلعي محیط پیدا کړئ.

## پوښتنې

۱– د داسې مثلث محیط پیداکړئ چې د ضلعو اوږدوالی یې ٦، ۸، ۱۰ سانتي متره وي.

۲– د داسې مربع د محیط اوږدوالی پیداکړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ۵ سانتي متره وي.

۳ – د مستطیل محیط پیداکړئ چې اوږدوالی یې ٦ سانتي متره او سور یې ٤ سانتي متره وي.

٤– د داسې پنځه ضلعي محیط پیدا کړئ چې د هغه اضلاعوي اوږدوالی (۲، ۲، ۳، ۵ او ۳) سانتي متره وي.

۵ – د داسې شپږ ضلعي محیط پیدا کړئ چې د هغه اضلاعوي اوږدوالی (٤، ۳، ۳، ۳، ۳ او ٤) سانتي متره وي.

# د سطحې پېژندنه

## پوښتنې

- تاسو هریو د خپلو لاسونو ورغوي په خپلو میزونو باندې کېږدئ او یوې خواته یې کش کړئ او ووایاست چې څه حس کوئ؟
- ویلای شئ ستاسو د میز دغه برخه دخه په نوم یاد یږي؟
- د خپل ټولګي په دېوال باندې لاس کش کړئ او ووایاست چې هغه دیوال د څه په نامه یادوي؟
- که چېرې خط کش پر مېز باندې کیږدئ او وګورئ چې ټولې برخې یې د میز د سطحې پر مخ تماس کوي. دغه سطحې ته څه ډول سطحه وایي؟



**مثال:** راکړل شوي شکل ته پام وکړئ تاسو د میز ا و د کتاب سحطې وګورئ، که چیرې خط کش د میز یا کتاب په سطحه کیږدئ، د خط کش ټولې برخې د میز او کتاب له سحطو سره تماس کوي چې دمیز د سطحې یوه هواره سطحه ښکاره کوي، د میز او د کتاب د سطحې په نامه یادیږي.

**فعالیت**

**- په خپلو ډلو کې یو له بل سره له مشورې وروسته د دوو هوارو جسمونو د سطحو نومونه واخلئ او د کاغذ پر مخ یې ولیکئ.**

**- له هرې ډلې څخه یو نماینده تختې ته ولاړ شئ، د هغه شیانو سطحه چې نومونه یې اخیستي دي، پر تخته یې ولیکئ او واضح یې کړئ.**

## کورنۍ دنده

د دریو شیانو د سطحې نومونه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې د هوارې سطحې ښودونکې وي ؟

# د دایرې او دایروي سطحې پېژندنه

## د دایرې قطر، شعاع او وتر

**پوښتنې**

- د یوشي نوم اخیستلای شئ چې د دایرې شکل ولري؟
- فلزي سکه څه ډول شکل لري؟
- ستاسو په نظر د بایسکل او موټر ټایرونه څه ډول شکل لري؟

**دایره**: لاندې شکل یوه دایره او د (الف) نقطه د دایرې مرکز دی.




**د دایرې سطحه**: په لاندې شکل کې زیړه شوې برخه د دایرې سطحه راښیي.



**د دایرې قطر**: په مخامخ شکل کې د الف ج
قطعه خط د دایرې قطر دی.




**د دایرې شعاع**: په مخامخ شکل کې د الف ج
قطعه خط د دایرې شعاع ده.




**د دایرې وتر**: د (د ه) خط په مخامخ شکل
کې د دایرې وتر ښيي.




### فعالیت



- په خپلو کتابچو کې یوه دایره رسم کړئ، مرکز يې ونوموئ او په همدې ډول د دایرې قطر، شعاع او وتر رسم او وټاکئ.
- په ډله ییز کار کې له کاغذ څخه پرې شوې دایره کې چې د ښاغلي ښوونکي له خوا درکړل شوې ده، د دایرې قطر، شعاع او وتر په جلا جلا توګه و ښیئ.

### کورنۍ دنده

درې کاغذونه د دایرې په شکل پرې کړئ، د هرې یوې دایرې شعاع، قطر او وتر په کې په جلا ، جلا توګه و ښایاست؟

# د سطحې د واحد پېژندنه او د مربع د مساحت پیداکول

**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د سطحې د اندازه کولو واحد څه شی دی، نوم یې واخلئ؟
- ویلای شئ چې یو سانتي متر مربع، په یوه سطحه کې څومره مساحت ښیي؟

**د سطحې واحد متر مربع او سانتي متر مربع دی.**
**یو متر مربع، هغه مربع ده چې د هرې ضلعې اوږدوالي یې یو متر وي.**

یو سانتي متر مربع له هغې مربع څخه عبارت ده چې هره ضلعه یې یو سانتي متر وي. لکه:




**مثال:** د ( ا ب ج د) د مربع مساحت پیداکړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ٤ سانتي متره وي.

**حل**

۴ سانتي متره × ۴ سانتي متره = د ( ا ، ب ، ج ، د ) مربع مساحت

۱۶ سانتي متره مربع =

په شکل کې هم لیدل کیږي چې لویه مربع له ۱٦ کوچنیو مربع گانو څخه جوړه شوې ده.




## فعالیتونه

۱- په ډلو کې د (ا ب ج د) د مربع په اړوند فکر وکړئ؟




وېي شمېرئ چې دغه مربع له څو کوچنیو مربع گانو څخه جوړه شوې ده؟

پایله یې په لاس راوړئ چې د (ا ب ج د) د مربع مساحت به څو مره وي؟

۲- په ډلو کې د (هـ و ز ح) د مربع مساحت پیدا کړئ.

که د هرې ضلعې اوږدوالی یې ( ۵ ) سانتي متره وي.

د (هـ و ز ح) د مربع مساحت = ۰۰۰ × ۰۰۰ = ۰۰۰

ضلع × ضلع = د مربع مساحت

## کورنۍ دنده

له کاغذ څخه په مختلفو اندازو دوه داني مربع ګاني جوړې کړئ د خط کش په مرسته یې د ضلعو اوږدوالی پیدا کړئ او وروسته یې مساحت پیدا کړئ؟

## پوښتنې

۱- د هغې مربع مساحت پیدا کړئ چې د یوې ضلعې اوږدوالی یې ۷ سانتي متره وي؟

۲- د هغې مربع مساحت پیدا کړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ۸ سانتي متره وي؟

۳ - د هغې مربع مساحت پیدا کړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ۱۰ سانتي متره وي؟

٤- که د یوې مربع د یوې ضلعې اوږدوالی ٦ سانتي متره وي، ددې مربع مساحت پیدا کړئ

۵ - د لاندې مربع ګانو مساحت پیدا کړئ.



# د مستطیل د مساحت پیدا کول

- څه فکر کوئ چې د مستطیل ټولې ضلعې سره مساوي دي او که نه؟
- د (ا ب ج د) مستطیل له څوکوچنیو مربع ګانو څخه جوړشوی دی.
- ویلای شئ چې د مستطیل کومو ضلعو ته د مستطیل اوږدوالی او کومو ضلعو ته د مستطیل سور وایي؟
- ستاسو په نظر د مستطیل مساحت څنګه پیدا کیږي؟

**سور × اوږدوالی = د مستطیل مساحت**

**مثال:** د (ا ب ج د) د مستطیل مساحت پیدا کړئ چې اوږدوالی ٦ سانتي متره او سور يې ۳ سانتي متره وي.




**حل**

۳سانتي متره × ۶ سانتي متره = د (ا ب ج د) د مستطیل مساحت

۱۸ سانتي متره مربع =

## فعالیت

- په خپلو ډلو کې د (ا ب ج د) د مستطیل مساحت پیدا کړئ چې اوږدوالی یې ۱۰ سانتي متره او سور یې ۵ سانتي متره دی

**۰۰۰= ۰۰۰ × ۰۰۰ = مساحت مستطیل**

- د سطحې د مقیاس واحد هم ولیکئ.



## کورنۍ دنده

-د هغه مستطیل مساحت پیداکړئ چې اوږدوالی(طول) یې ۷ سانتي متره او سور(عرض) یې ۳ سانتي متره وي؟

-که چیرې د مستطیل اوږدوالی ۱۰ سانتي متره او سوریې ۶ سانتي متره وي مساحت یې پیدا کړئ.



## پوښتنې

۱– د داسې مثلث محیط پیداکړئ چې د ضلعو اوږدوالی یې په ترتیب سره ۵، ۷، ۹ سانتي متره وي.

۲– د داسې مربع محیط پیداکړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ۳ سانتي متره وي.

۳– د داسې مستطیل محیط پیداکړئ چې اوږدوالی یې ۶ سانتي متره او سور یې ٤ سانتي متره وي.

٤– یوه پنځه ضلعي رسم کړئ، د هرې ضلعې د اوږدوالي له پیدا کولو وروسته یې محیط پیداکړئ.

۵– یوه شپږ ضلعي رسم کړئ، د شپږو واړو ضلعو اوږدوالی او محیط یې پیدا کړئ.

٦– د داسې مستطیل مساحت پیداکړئ چې اوږدوالي یې ۹ سانتي متره او سور یې ٥ سانتي متره وي.

# د کسر د صورت، مخرج او کسري خط (خط بر) مفهوم

**پوښتنې**

- ویلای شئ په لاندې شکل کې دایره پر څو مساوي برخو وېشل شوې ده؟
- څه فکر کوئ څو برخې يې رنګه شوې دي؟
- ستاسو په نظر له څو برخو څخه څو برخې يې رنګه شوي دي؟

**لومړی مثال**: لاندې شکل په نظر کې ونیسئ.

دایره په دوو مساوي برخو وېشل شوې ده چې یوه برخه يې رنګه او بله برخه يې سپینه ده.

هره برخه يې په $\frac{١}{٢}$ سره ښودل کیږي، چې یو کسر ښيي معنا يې دا ده چې دایره پر دوو مساوي برخو وېشل شوې ده، نیمه يې توره او نیمه يې سپينه ده.






**دویم مثال:** لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ او د جملو تش ځایونه پر مناسبو عددونو سره ډک کړئ.



۱- په شکل کې لویه مربع په .......۹ مساوي برخو وېشل شوې ده.

.........۴ برخې يې تورې شوې دي.

له .........۹ برخو څخه ..........۴ برخې تورې شوې دي.

د مربع $\frac{۵}{۹}$ برخې سپینې پاتې شوې دي.

## فعالیت

۲- د لاندېنیو شکلونو د تورو شوو برخو اړوند کسرونه ولیکئ، همدارنګه صورت مخرج او کسري خط يې وښیاست او د هر یوه نوم ورته مخامخ ولیکئ.



$\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$

## کورنۍ دنده

د لاندېنیو شکلونو د اړونده سپینو برخو کسرونه ولیکئ. صورت، مخرج او کسري خط یې وښیاست یعنې هریوه ته نوم مخامخ ولیکئ.



$\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$

## پوښتنې

د لاندې شکلونو د تورو شوو برخو اړوند کسرونه ولیکئ صورت، مخرج او کسري خط یې وښیاست.



$\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$ $\frac{\dots}{\dots}$



$\frac{\dots}{\dots}$

### دري دېرشم لوست

# د هغو کسرونو پرتله کول چې مخرجونه يې سره مساوي وي

**پوښتنې**

- ويلای شئ که چېرې په دوو کسرونو کې چې مخرجونه يې مساوي او صورتونه يې مختلف وي، کوم کسر به لوی وي؟
- ستاسو په فکر په دوو کسرونو کې چې مخرجونه يې مساوي او صورتونه يې مختلف وي، کوم يو به يې کوچنی وي؟

**مثال:**





$\frac{۵}{۸} > \frac{۳}{۸}$      $\frac{۲}{۶} < \frac{۵}{۶}$

**فعاليت**

په خپلو ډلو کې د لاندې شکلونو اړوند کسرونه وليکئ او بيا يې د > او < نښو په واسطه پرتله کړئ.



$\frac{...}{...} ... \frac{...}{...}$      $\frac{...}{...} ... \frac{...}{...}$

## کورنۍ دنده

د دوو جوړو کسرونو تر منځ په تش ځای کې د (< یا >) مناسبه نښه ولیکئ.

$\frac{۳}{۵}$ ◯ $\frac{۱}{۵}$      $\frac{۳}{۴}$ ◯ $\frac{۱}{۴}$

$\frac{۴}{۹}$ ◯ $\frac{۷}{۹}$      $\frac{۲}{۶}$ ◯ $\frac{۵}{۵}$

## پوښتنې

پرتله يې کړئ.

$\frac{۱۳}{۱۸}$ ◯ $\frac{۱۵}{۱۸}$      $\frac{۵}{۹}$ ◯ $\frac{۷}{۹}$

$\frac{۴۰}{۷۵}$ ◯ $\frac{۳۴}{۷۵}$      $\frac{۹}{۱۱}$ ◯ $\frac{۴}{۱۱}$

$\frac{۷۵}{۸۰}$ ◯ $\frac{۶۲}{۸۰}$      $\frac{۸}{۲۰}$ ◯ $\frac{۱۰}{۲۰}$

$\frac{۶۷}{۸۵}$ ◯ $\frac{۷۶}{۸۵}$      $\frac{۵۳}{۷۳}$ ◯ $\frac{۵۴}{۷۳}$

$\frac{۷۸}{۹۳}$ ◯ $\frac{۸۷}{۹۳}$      $\frac{۶۰}{۷۰}$ ◯ $\frac{۶۱}{۷۰}$

## خلور دیرشم لوست

# د عامو کسرونو جمع چې مخروجونه يې سره مساوي وي

**پوښتنې**

- ويلای شئ په لاندې شکل کې کوم کسر د شين رنګ په واسطه په نښه شوی دی؟
- ويلای شئ د لاندې شکل هغه برخه چې د ژيړ رنګ په واسطه په نښه شوی ده، د کوم کسر ښودونکې ده؟
- په پای کې د شکل ټولې څو برخې په نښه شوي دي. اړونده کسر به يې کوم وي؟

**مثال:** لاندې مساوي مخرج لرونکي کسرونه سره جمع کړئ.




**حل:** ددې ډول کسرونو د جمع کولو لپاره صورتونه سره جمع کوو او پر يوه مخرج يې ليکو:

$$\frac{٢}{٥}+\frac{١}{٥}=\frac{٣}{٥}$$

## فعالیت

مخامخ شکل ته په پاملرني سره په خپلو ډلو کې د کسرونو د جمعې حاصل پر لاس راوړئ چې مخرجونه يې سره مساوي دي.



$\frac{۳}{۸}+\frac{۲}{۸}=\frac{...}{...}$

که چېرې وغواړئ هغه عام کسرونه چې مخرجونه يې مساوي وي يو له بله سره جمع کړئ، نو صورتونه يې جمع او په يوه مخرج يې وليکئ، د کسرونو د جمعې حاصل لاسته راځي.



## کورنۍ دنده

د لاندېنيو کسرونو د جمعې حاصل لاس ته راوړئ.

$\frac{۱}{۵}+\frac{۸}{۵}=\frac{...}{...}$ $\qquad$ $\frac{۲}{۷}+\frac{۳}{۷}=\frac{...}{...}$



## پوښتنې

پرتله يې کړئ.

$\frac{۱۳}{۱۶}+\frac{۲}{۱۶}=$ $\qquad$ $\frac{۲}{۱۲}+\frac{۵}{۱۲}=$

$\frac{۲۵}{۱۰۰}+\frac{۵}{۱۰۰}=$ $\qquad$ $\frac{۱۱}{۳۰}+\frac{۱۱}{۳۰}=$

# د عام کسر تفریق چې مساوي مخرجونه ولري

## پوښتنې

- ویلای شئ چې لاندې شکل په څو مساوي برخو ویشل شوی دی؟
- څوک ویلای شي چې څو برخې يې رنګه شوي دي؟
- کولای شئ د تورو شوو برخو اړونده کسر يې ولیکئ؟

**لومړی مثال:** په لاندې شکل کې له پنځو برخو څخه درې برخې يې توري شوي دي او له هغې څخه یوه برخه لرې کوو. له تورې شوې برخې څخه يې څو برخه يې پاتې کیږي؟

$$\frac{٣}{٥} - \frac{١}{٥} = ?$$

**حل:** د هغه کسرونو د تفریق کولو لپاره چې مخرجونه يې سره مساوي وي صورتونه يې يو له بله تفریقوو او په یوه مخرج يې لیکو.

$$\frac{٣}{٥} - \frac{١}{٥} = \frac{٢}{٥}$$



### فعالیت

مخامخ شکل ته په پاملرنې سره په خپلو ډلو کې د لاندېنیو هم مخرجه عامو کسرونو د تفریق حاصل په لاس راوړئ.



$$\frac{۶}{۸} - \frac{۴}{۸} = \frac{...}{...}$$

**دویم مثال**: د لاندې یو شان مخرج لرونکو کسرونو د تفریق حاصل لاس ته راوړئ:

$$\frac{۶}{۷} - \frac{۳}{۷} = \frac{۳}{۷} \qquad \frac{۵}{۹} - \frac{۲}{۹} = \frac{۳}{۹}$$



## کورنۍ دنده

تفریق یې کړئ.

$$\frac{۹}{۱۵} - \frac{۵}{۱۵} = \frac{...}{...} \qquad \frac{۸}{۱۱} - \frac{۶}{۱۱} = \frac{...}{...}$$



## پوښتنې

حل کړئ.

$$\frac{۶}{۲۰} - \frac{۲}{۲۰} = \qquad \frac{۷}{۱۰} - \frac{۴}{۱۰} =$$

$$\frac{۱۷}{۳۵} - \frac{۹}{۳۵} = \qquad \frac{۷}{۱۲} - \frac{۵}{۱۲} =$$

# پنځم څپرکی

## داندازه کولو واحدونه



# د اوږدوالي(طول) د اندازه کولو واحد

## د اجزاوو او اضعافو یو پر بل باندې بدلول

**پوښتنې**

- ویلای شئ چې د شیانو اوږدوالی د څه شي په واسطه اندازه کیږي؟
- ستاسو په فکر د اوږدوالي د اندزه کولو واحد څه شی دی؟



### د اوږدوالي د اندازه کولو واحد متر دی

**د متر اجزاوي:**

۱ متر مساوي دی له:

- ۱۰ دیسي متره
- ۱۰۰ سانتي متره
- ۱۰۰۰ ملي متره

**د متر اضعاف:**

- ۱ دیکا متره = ۱۰ متره
- ۱ هکتو متره = ۱۰۰ متره
- ۱ کیلو متره = ۱۰۰۰ متره

**لومړی مثال:** ۵ متره خو ملي متره کیږي؟

**حل:** څرنګه چې یو متر له ۱۰۰۰ ملي مترو سره مساوي دی.

۵۰۰۰ ملي متره = ۱۰۰۰ × ۵ متره

**دویم مثال:** ۷ هکتو متره څو متره کېږي؟

**حل:** څرنگه چې یو هکتو متر ۱۰۰ متره کیږي

۷ × ۱۰۰ = ۷۰۰ متره

## فعالیت

**په ډلو کې دا لاندې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.**

**۱ دیکامتر مساوي دی له .............. مترو سره**

**۱ هکتومتر مساوي دی له .............. مترو سره**

**۱ کیلو متر مساوي دی له .............. مترو سره**

**۳ متره مساوي دي له ...................... ملي مترو سره**

**۷ متره مساوي دي له ...................... سانتي مترو سره**

**۹ متره مساوي دي له...................... دیسي مترو سره**

**۶ کیلو متره مساوي دي له ................ مترو سره**

**۵ هکتومتره مساوي له ..................... مترو سره**

**۸ دیکا متره مساوي دي له ................ مترو سره**



## کورنۍ دنده

لاندې تش ځایونه ډک او ورکړل شوو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۲۰ دیسي متره مساوي دي له .......... مترو سره.

۳۰۰ سانتي متره مساوي دي له........ مترو سره.

۲۰۰۰ ملي متره مساوي دي له ......... مترو سره.

۵ متره څو سانتي متره کیږي.

۸ متره څو ملي متره کیږي.



## پوښتنې

**۱**- لاندې پوښتنې حل کړئ.

۵ متره څو دیسي متره کیږي؟
۸۰ دیسي متره څو متره کیږي؟
۷ متره څو ملي متره کیږي؟
۳ کیلومتره څو متره کیږي؟
۲ کیلومتر څو سانتي متره کیږي؟
۹ کیلو متره څو متره کیږي؟
۴۵ هکتو متره څو متره کیږي؟

**۲**- په لاندې تشو ځایونو کې مناسب عددونه ولیکئ.

۵ متره مساوي دي له . . . . . . . دیسي مترو سره.
۵ متره مساوي دي له . . . . . . . سانتي مترو سره.
۳ متره مساوي دي له . . . . . . . ملي مترو سره.

# د کتلې د اندازه کولو واحد

## د اجزاوو او اضعافو یو پر بل باندې بدلول

**پوښتنې**

- ویلای شئ چې کتله د څه شي په واسطه اندازه کېږي؟
- ویلای شئ چې د کتلې د اندازه کولو واحد څه شی دی؟
- کولای شو چې د کتلې د واحد اجزا او اضعاف یو پر بل واړو؟

د کتلې د اندازه کولو واحد گرام دی

**د گرام اجزاء**

۱ گرام مساوي دی په:

- ۱۰ دیسي گرامو
- ۱۰۰ سانتي گرامو
- ۱۰۰۰ ملي گرامو



**اضعاف گرام:**

- ۱ دیکاگرام = ۱۰ گرامه
- ۱ هکتوگرام = ۱۰۰ گرامه
- ۱ کیلوگرام = ۱۰۰۰ گرامه

**لومړی مثال:** ۳ کیلوگرامه څو گرامه کیږي؟

**حل:** څرنگه چې ۱ کیلوگرام له ۱۰۰۰ گرامو سره مساوي دی.نو:

۳۰۰۰ گرامه = ۱۰۰۰ گرام× ۳

**دویم مثال:** ۷ گرامه څو سانتي گرامه کېږي؟

**حل:** څرنگه چې یو گرام ۱۰۰ سانتي گرامه کېږي، نو:

۷۰۰ سانتي گرامه = ۱۰۰ سانتي گرامه × ۷

### فعالیت

**په ډلو کې دا لاندې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ؟**

**۱ دیکاگرام مساوي دی له ................... گرامو سره**

**۱ هکتو گرام مساوي دی له ................. گرامو سره**

**په خپلو کتابچو کې یې حساب کړئ.**

**۸ دیکا گرامه له څو گرامو سره برابر دی؟**

**۵ هکتو گرامه له څو گرامو سره برابر دي؟**

**۳ کیلوگرام گرامه له څو گرامو سره برابر دي؟**

### کورنۍ دنده

تش ځایونه ډک کړئ.

۵۰ دیسي گرامه مساوي دي له ................ گرامه سره.

۶۰۰ سانتي گرامه مساوي دي له ............... گرامه سره.

۹۰۰۰ ملي گرامه مساوي دي له ..................گرامه سره.

### پوښتنې

لاندې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړي.

٤ گرامه مساوي دي له ........................ ملي گرامو سره.

۹ گرامه مساوي دي له ..................... سانتي گرامو سره.

۵ گرامه مساوي دي له ..................... دیسي گرامو سره.

# د ظرفیت د اندازه کولو واحد

## یو پر بل باندې د اجزاوو او اضعافو بدلول

**پوښتنې**

- څه فکر کوئ چې مایعات (اوبلن) لکه اوبه، تیل، غوړي، شيدې، او نور د څه شي په واسطه اندازه کېږي؟
- څه فکر کوئ موږ کولای شو چې د ظرفیت د واحد اجزاء او اضعاف یو پر بل باندې تبدیل کړو.

د ظرفیت اندازه کولو واحد لیتر دی

یو لیتر (شیدې، چای او نور) تقریباً له څلورو متوسطو ګېلاسونو سره مساوي دي.

### د لیتر اجزاء

۱ لیتر مساوي دی په:

- ۱۰ دیسي لیتره
- ۱۰۰ سانتي لیتره
- ۱۰۰۰ ملي لیتره



د لیتر اضعاف:

- ۱ دیکا لیتر = ۱۰ لیتره
- ۱ هکتو لیتر = ۱۰۰ لیتره
- ۱ کیلو لیتر = ۱۰۰۰ لیتره

**لومړی مثال:** ۲ هکتو لیتره له څو لیتره سره مساوي کیږي؟

**حل:** څرنګه چې ۱ هکتو لیتر له ۱۰۰ لیترو سره مساوي دی، نو:

۲۰۰ لیتره = ۱۰۰ لیتره × ۲

**دویم مثال:** ۷ دیکا لیتره څو لیتره کیږي؟

**حل:** څرنګه چې یو دیکا لیتر ۱۰ لیتره کیږي، نو:

۷۰ لیتره = ۱۰ لیتره × ۷

## فعالیت

**په ګروپونو کې دا لاندې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.**

**۱ یو دیکالیتر مساوي دی له ............. لیترو سره.**

**۱ یو هکتو لیتر مساوي دی له ............ لیترو سره.**

**۱ کیلو لیتر مساوي دی له .............. لیترو سره.**

**په خپلو کتابچو کې یې حساب کړئ**

**۹ لیتره څو دیسي لیتره کیږي.**

**۷ لیتره څو سانتي لیتره کیږي.**

**۳ لیتره څو ملي لیتره کیږي.**



## کورنۍ دنده

دا لاندې تش ځایونه ډک کړئ.

۵۰ دیسي لیتره مساوي دي له........................ لیترو سره.

۳۰۰ سانتي لیتره مساوي دي له .................. لیترو سره.

۱۰۱۰۰۰ ملي لیتره مساوي دي له .................... لیترو سره.



## پوښتنې

۲ کیلو لیتره څو لیتره کیږي؟

۵ هکتو لیتره څو لیتره کیږي؟

۷ دیکا لیتره څو لیتره کیږي؟

# د وخت (زمان) د مقیاس واحد

## یو پر بل باندې د اجزاوو او اضعافو بدلول

**پوښتنې**

- څه فکر کوئ د وخت دقیق پوهېدل څه ارزښت لري؟
- ستاسو په فکر وخت د څه شي په واسطه اندازه کېږي؟
- کولای شو چې د وخت د واحد اجزاء او اضعاف یو پر بل باندې واړوو؟

د مقیاس واحد ساعت دی.

**د وخت د واحد اجزاء:**

- ٦٠ ثانیې = یوه دقیقه
- ٦٠ دقیقې = یو ساعت
- ٢٤ ساعته = یوه شپه او ورځ




د وخت د واحد اضعاف

- ١ اونۍ = ٧ ورځې کېږي.
- ١ میاشت = ٤ اونۍ کېږي.
- ١ کال = ١٢ میاشتې کېږي.

**لومړی مثال**: ۵ دقیقې څو ثانیې کېږي؟

**حل**: څرنگه چې ١ دقیقه ٦٠ ثانیې کېږي، نو:

٣٠٠ ثانیې = ٦٠ ثانیې × ۵

**دویم مثال:** یوه اونۍ څو ساعتونه کېږي؟

**حل:** څرنگه چې یوه اونۍ ٧ شپې او ٧ ورځې کېږي او یوه شپه او یوه ورځ ٢٤ ساعتونه کېږي، نو : ١٦٨ساعت = ٢٤ ساعت× ٧ = یوه اونۍ

## فعاليت




دا لاندې تش ځايونه په مناسبو عددونو ډک کړئ؟

يوه شپه او ورځ مساوي ده له ............. ساعتونو سره

يو ساعت مساوي دی له .................. دقيقو سره

يوه دقيقه مساوي ده له ................... ثانيو سره

يو کال مساوي دی له ..................... اونيو سره

په خپلو کتابچو کې يې حل کړئ.

۷ ساعتونه څو دقيقې کيږي؟

٤ شپې او ورځې څو ساعتونه کيږي؟

د وخت د مقياس يو لوی واحد پيړۍ (قرن) دی چې ۱۰۰ کاله = يوه پيړۍ
يا يو قرن

## کورنۍ دنده



- وښيئ چې يو ساعت څو ثانيې کيږي؟
- وښيئ چې يو کال څو اونۍ کيږي.

## پوښتنې



- يو ساعت څو ثانيې کېږي؟
- يو کال څو ورځې کېږي؟
- يو کال څو اونۍ کېږي؟
- يوه پېړۍ څو مياشتې کېږي؟